بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

خیرکم من تعلم القرآن وعلمہ (الحدیث)

په تاسو کښې ډیر غوره هغه دۓ چه مجید قرآن لولي او نورو ته یې وائي.

# فضائل القرآن


مصنفہ

حضرت مولانا زکریا صاحب شیخ الحدیث

مظاہر العلوم سہارنپور

مترجمہ

حبیب الرحمٰن دار التصنیف رستم

ضلع مردان

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

خَيْرُكُمْ مَّنْ تَعَلَّمَ الْقُرْاٰنَ وَعَلَّمَهٗ (الحدیث)

په تاسو کښې ډیر غوره هغه دے چه خپله قرآن لولي او نورو ته یې وائي

# فضائل القرآن

مصنفه

حضرت مولٰنا زکریّا صاحب شیخ الحدیث

مظاهر العلوم سهارنپور

مترجمه

(الحاج) مولٰنا حبیب الرحمٰن صاحب (مدظله)

دار التصنیف رستم ضلع مردان

# د تبلیغ د کتابونو د پښتو ترجمې ضرورت

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

الحمد لله وکفیٰ وسلام علی عبادہ الذین اصطفیٰ۔

څه د صوبه سرحد په رومینی تبلیغی تحو لکی کښې چه هغه په خوارلسو تنو جوړه وو۔ په سنه ۱۹۴۳ء کښې نظام الدین اولیاء دهلی ته تلے وُم۔ په دیکښې ستا څو رپیجند کلو محترم احسان الله باچا صاحب د پارهوتی دے۔ مونږ چه بیرته راغلو نو په هغه وخت کښې څه په چارسده کښې وُم۔ په دغه وخت کښې د تبلیغ کارکول ډیر گران وو۔ خو د خدائے په فضل څه د تحصیل چارسدے په جامع مسجد کښې خدائی خطیب وُم نو د تحصیل پوېد ونکو خلقو څما سره په تبلیغ کښې حصه واغسته۔ او مونږ به تر تنگی او نستے پورے څه قدرے کارکاوو خو هغه تش د تبلیغ د کار ذکر اذکار قدرے وو۔ د تبلیغ په کار کښې مونږ هیڅ عمومی گشت اولږ عوندے دعوت او هغه هم د باهر وتو نه کیدے شه۔ څه خو ډیر کار قابل نه وُم۔ خو د خدائے فضل وو۔ څما مرکزو په پښاور او مردان کښې چه دے تحو لکی اکثر مرکزی صرف ړدے دواړو ضلعو

دُو۔ سِنہ کار اُکڑ۔ او دا کاریے پہ ټولو سرحدی اضلاع،
ریاستونو او قبائلو کښې خور کړ۔ او د پاکستان د قیام نه روستو
"رایونه" د "نظام الدین" دویم مشرځائے اوګرزیده۔ نظام
الدین ته په صرف سِنہ تعلیم یافته او مالدار قدرے ته۔ او "رایونه"
ته د خدائے په فضل عوام او دلیر مال خاوندان په ډلو، ډلو
ور رواں شو۔ نن روځے چہ چالس روځے وی او شل ډیرش
روپۍ ورسره وی نو رایونه ته ځی۔ څه په یکم جولائی سنه ۱۹۶۳
"رایونه" ته سره دیو څو مرکر ولاړم۔ هلته م د قبائلو ریاستونو
او دغسے د بانډو پښتانه اولیدل چه د ځلور میاشتو، دوو چلو
او درے چلے د پاره راغلی وو۔ دی یو طرف ته د دا سے امیرانو
او مرکرو په ټولګو کښې په بانډو کښې ګرزیده۔ چه نه امیر
د د پښتنو په خبر وپویده او نه پښتون د خپل امیر یا مرکرو
په جبه پویده۔

دَ غسے د دے "رایونه" ټول بیان کونکی په اردو بیانونه
کوی۔ او پښتون ورته بک خوله شولی وی ناست وی۔ که څوک
پښتون د غلته کله بیان ته اودریکی نو هغه هم په اردو بیانونه
کوی۔ څه تر ۱۹ جولائی سنه ۶۳ پورے په رایونه کښې اِسار
شوم۔ ما د ټولو بیانونو چه دعوت، تعلیم، او ګشت دے
پوره جائزه واخښته۔ په حقیقت کښې نن که د ټولے دنیا

په دين د جمع کيدو څه صورت کيدے شي. نو هغه صرف د
تبليغي جماعت دا غټے خبرے دي - چه کلمهٔ طيبه[1]، مونځ[2]
علم[3] او ذکر، اکرام[4] مسلم، تصحيح[5] نيت، او تبليغ[6] دے. د غه وجه
ده. چه نن صرف تبليغي جماعت يو عالمي تبليغي عمل کوي.
د سحر دوه گهنټے د دے غټو خبرو په باره کښ بيان وي
بيا يوه گهنټه د ضروريانو د پاره چهټي وي. بيا درے گهنټے
د تعليم د پاره وي چه په دے کښ اول د قرآن د صحيح
لوستو چه تجويد ورته وائي. اجتماعي عمل کيږي - بيا د
مولانا زکريا صاحب اټه کتابونه دي - د دے هر يو نه دوه
درے پاڼے لوستے شي - او هغه صرف د هغي د عبارت
لوستل دي - په دے کښ هيڅ قسم د ځانه تشريح يا د چا د
سوال جواب اجازت نه وي. بيا په آخر کښ د غه بره غټے
خبرے چه نمبرونه ورته هم وائي - نوي کسان مختصر بيانوي
بيا آرام وي. د ماسپخين نه روستو بيا هم دغه د تعليم کار
وي. گويا د دے کتابونو درس لگ نه لگ پنځه گهنټے روزانه
دے - او په دے د اُردو نه بے خبره پښتون هيڅ نه پوهيږي
د ماز يگر نه روستو اول د گشت فضائل بيانيږي - بيا د گشت
آداب تر ماښامه خورے شي. د ماښام نه روستو د سورة
يٰسين لوستل د تسبيحات او صلوٰة اوّابين او نور ذکر وي

بیا دکارنه دراغلو جماعتونو کارکنداری. او روٗلے شی۔ په
دیکښ دکار په تهول سنه بهٔ بانددے مشران اعتراضونه او
اصلاحی بیانونه ورکوی. ریښتیا داده۔ چه دتبلیغی کار د
پوہید و دا ښه طریقه ده۔ دما سخوتن نه روستو دجناب
محترم مولانا یوسف صاحب خلف الرشید جناب محترم
مولانا الیاس صاحب مرحوم "دسیر الصحابہ" یوه واقعه
بیانیږی. دا د دعوت په رنگ کیښ عربی جوړ کتاب دے
او بیا تقریبًا یولس بجے خلق فورًا اوده شی۔ دتهجد دپاره
درے دیرے ستوما نتیا په وجه خال خال څوک پاسی۔ اکثر
په بانگ پاشی. درے روحانی، علمی، اصلاحی کار چه کم
اثرات په پاکو زړونو کیږی۔ هغه دلید و سره تعلق لری۔
خدای موسره ځما دیر دیر گنداره دغلته او دجماعتونو سره
لرے او نزدے په کارکیښ قبول که امین۔

په دے کارکیښ پښتون ته دیره کرانه پیښه ده۔ ځکه
دغلته ما ته دیرو دوستانو فرمایش او که چه ته دے دکتابونو
پښتو ترجمه او که چه موبږ په دے پوهیږو او دا کتابونه په
خپل کور کلی او سفر کیښ بخپله هم وایو او خپلو ناریسنو
دوستانو او زنانوو ته هم داوایانو۔ او که بخپله نه وی۔ نو
دبل چانه به یے اورو۔ نو په دے به پوهیږو۔ ما ورته اووے

چه څه خو په ډیر لوی سفر کښې تګ کوم چه هغه د قرآن شریف تفسیر او د بخاري شریف د پښتو شرح ده - خو دا هم بد نه اوګڼئ له چه پښتانه دِ د دے روحاني کارونه بے برخے پاتے وي ځکه که ستاسو دعاوي - نو څه به د مولنا زکریا صاحبؒ د کتابونو پښتو ترجمه لیکم او چهاپ ته به یې ورکوم - خدائے دِ څما مل شي - کاروښے دردے سخو - او څه عاجز او ډیر مخ تورن یم - الله دِ څما امداد اوکي - څما صرف په الله توکل دے او هغه زما له کافي دے - څکښې به د قرآن د فضائل ترجمه شروع کیږي - انشاء الله تعالی -

**حبیب الرحمٰن عفي عنهٗ**

# بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِىْ خَلَقَ الْاِنْسَانَ وَعَلَّمَهُ

ټول تعریفونه د هغه خدائے دپاره دي چا چه انسان پیدا که او ده

الْبَيَانَ ۞ وَاَنْزَلَ لَهُ الْقُرْاٰنَ

ته بے د بیان چل او ښو. او ده دپاره یے قرآن نازل که.

وَجَعَلَهُ مَوْعِظَةً وَّشِفَآءً وَّهُدًى

او دا قرآن د ایمان دارو دپاره وعظ د روغوالي دارو

وَّرَحْمَةً لِّذَوِى الْاِيْمَانِ لَارَيْبَ فِيْهِ وَلَمْ يَجْعَلْ

هدایت او رحمت که. په ده کښي نه شک شته. او نه یه ده

لَّهُ عِوَجًا وَّاَنْزَلَهُ قَيِّمًا حُجَّةً وَّنُوْرًا

کښي څه کوږ والے شته. او دے ښه کلک دلیل او رڼا ده.

لِّذَوِى الْاِيْقَانِ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ

د یقین د خاوند الو دپاره. او ښه پوره پوره درود او سلام دوي

الْاَتَمَّانِ الْاَكْمَلَانِ عَلٰى خَيْرِ الْخَلَائِقِ مِنَ الْاِنْسِ

په غوره د مخلوقاتو باندے د ښي آدمو او د پیریانو نه. چه د هغه

وَالْجَآنِّ ۞ الَّذِىْ نَوَّرَ الْقَلْبَ وَالْقُبُوْرَ بِنُوْرِهٖ وَرَحْمَةً

رڼا د ژوندو خلقو زړونه او د مړو قبرونه روښانه کړل او ده

لِّلْعٰلَمِيْنَ ظُهُوْرُهٗ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَاَصْحَابِهِ الَّذِيْنَ

ظهور د مخلوقاتو دپاره رحمت وو. او ده په اولاد او اصحابو

هُمْ نُجُومُ الْهِدَايَةِ وَنَاشِرُوا الْفُرْقَانِ وَعَلٰى

کُم چه د هدایت ستوري او د قرآن خوره وُنکي وُو - او په هغه

مَنْ تَبِعَهُمْ بِالْاِيْمَانِ وَبَعْدُ

ایماندارو چه د دي تابعدار وُو - او د حمد او درود نه روستو

فَيَقُوْلُ الْمُفْتَقِرُ اِلٰى رَحْمَةِ رَبِّهِ الْجَلِيْلِ عَبْدُهٗ

د خدای د رحم ته مُحتاج بنده زکریا د یحیٰی ځوی عرض

الْمَدْعُوْ بِزَكَرِيَّا بْنِ يَحْيٰى هٰذِهِ الْعُجَالَةُ اَرْبَعُوْنَةٌ

کوی - چه دا یو تا ذی څلویښت حدیثونه د قرآن په

فِيْ فَضَائِلِ الْقُرْاٰنِ اَلَّفْتُهَا مُمْتَثِلًا لِاَمْرِ مَنْ

فضائلو کښ ما د هغه چا په حکم او لیکل چه د هغي اشاره

اِشَارَتُهٗ حُكْمٌ وَّطَاعَتُهٗ غُنْمٌ

قدرے هُم حکم دے - او د هغي تابعداری یو لُټ دے -

## د قرآن شریف د لوستو آداب

قرآن شریف د الله کلام دے - که یو د دنیا عاشق د خپل معشوق خط په ډیر وشوق لوستو خوند و نو او عزت ورکولی - نو د هغي خدائے چه د هغه بیحده حقیقی انعامات په هر چا باندے لګه د باران وریږی - د هغه د کلام لستو او اوریدو به څومره عزت نه پکار وی؟ قرآن د ډیر لوے اوز و د اور

باچا فرمان دے. دے داسے لوی ذات دے چه د ده د برابرۍ
خوک نه وو، نه شته، او نه به اوشی. چاچه د بادشاهانو
وینا په دربارونو کښې لیدلے یا اوریدلے وه هغهٔ په تجربه
معلومه کړے ده. چه داخومره د رعب نه ډک کلام وی او که
چا لیدلے نه وی. نو د چا نه به یے د دے د هیبت خبرے اوریدلے
وی. نو د فانی او عاجز باچا د کلام چه دا حال دے. نو د محبوب
او مهربان خدائے د کلام به څومره ډیر قدر، عزت او ادب
پکار وی!

حضرت عکرمه رضہ به چه قرآن شریف د لوستو د پاره
پرانستو نو دے به بے هوشه شه. او په جبه به یے وے چه هٰذَا
کَلَامُ رَبِّیْ. هٰذَا کَلَامُ رَبِّیْ. دا خما د رب کلام دے. دا خما د
رب کلام دے!

د قرآن لوستونکے دِ ځان بنده اوګڼړی او د خپل مهربان
انعام کوونکی مالک کلام دِ وائی. او داسے دِ دا وائی. چه څه
دَ قرآن د ادب نه عاجزه یم. په دے به خدائے ته ډیر نزدے
کیږی. او چه په غرور او غټ نظرئ قرآن لولی نو د ترقئ
نه به محروم وی.

## آداب

د مسواک او اودس نه پس چرته اړخ ته ډیر په عزت

او عاجزي سره مخ په قبله ڊ کيني. او د زړه په حضور په ډېرې عاجزۍ
ډ قرآن داسې وايي لکه چه دے گويا قرآن شريف خدائے ته
اوره وي. که ستونکے ئے په معني پوهيږي نو د وعدے او رحمت
په ايتو نو دے د خدائے نه بخننه او رحمت غواړي. او د وعيد
او عذاب په ايتونو دے د عذاب نه پناه غواړي. د خدائے
د عيوبونه د پاکوالي په ايتونو دے سبحان الله وايي. او که
د قرآن په لوستو ورله ژړا نه ورځي. نو په زوره ڊ د ژړا شکل
جوړه وي. او که ياده وُ لے مطلب نه وي نو رو رو ڊ قرآن لولي
قرآن شريف ڊ په رنيل يا غټ بالخت يا بل څه او چت ځائے
کيږدي. د قرآن لوستو په وخت کيني ڊ د چا سره خبرے نه کوي
او که ډېر ضرورت شه نو قرآن ڊ پټ کي بيا ڊ خبرے او کي. بيا
چه تلاوت شروع کوي نو اعوذ بالله ڊ بيا او وائي. که په کښرو
خلقو کښي چه هغي په خپلو کارونو مشغول وي قرآن وايي.
نو رو رو ويل پکار دي. کني په او چت آواز ڊ قرآن لولي
د قرآن شپږ ظاهري او شپږ باطني آداب بزرگان وايي:-

## ظاهري اداب

اول. ډېر په عزت په او داسه کيني مخ په قبله کيناستہ.

دويم. په تادي نه لوستہ. بلکه په صحيح قراءت لوستہ

دریم - دجرا گوشش کول - کہ نہ ورځی نو جرا شکل جوړول
څلورم - د رحمت او د عذاب د آیتو نو حق اداکول -
پنځم - کہ د ریاء بل تہ دخو دسے ویرہ وہ - نو بیہ زورو روو والي
کہ یني پہ زورہ دِ واۍ -
شپږم - پہ خوش آوازئ خود قراءت پہ قواعد ولوستہ

## باطني آداب

دقرآن لوستي دِ پہ زړہ کښ او ساتي چہ دا دپیر لوی اللہ
کلام دے - دویم - داللہ دلویي جلال او قوّۃ پہ فکر کښ
ږوی - دریم - ہر قسم وسوسے او خطرے دِ لرے کی -
څلورم - دقرآن پہ معنا کانو دِ فکر کوی - او خوند وند دِ پیاخلی
خوروښي ؟ یوہ تہولہ شپہ پہ دے آیت تیرہ کړے وہ - چہ - إِنْ
تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَإِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ
الْحَكِيمُ ۝ (ترجمہ) اے اللہ کہ تہ دی تہ عذاب ورکوے
نو دی ستا بندگان دی - او کہ دی تہ بخنہ کوے - نو تہ دعزّت
او حکمت خاوند یے -

او سعید بن جبیر ہم یوہ شپہ ترسحرہ دا آیت لوستہ چہ
وَامْتَازُوا الْيَوْمَ أَيُّهَا الْمُجْرِمُونَ ۝ (ترجمہ) اے گنہگارو
نن دقیامت پہ ورځ وبیلکانو نہ ارخ تہ شئ پنځم - دکم آیت

چه لوستونکوی خپل زړه د دے تابع کوی۔ لکه چه د رحمت
آیت وائي۔ نو د ده زړه د خوشالئ نه ډکیږی۔ او که د عذاب
آیت وائي۔ نو د ده زړه د ډیر یږی۔ شرم۔ خپل زړه د داسے
متوجه کی۔ لکه چه گویا خدای ده ته خبرے کوی او دے یے
اوری۔ خدای د موږ ټولو ته په دے آدابو د قرآن د لوستو
توفیق راکی۔ آمین

مسئله:۔ د دومره قرآن شریف یادول چه په هغے
مونځ روا کیږی په هر مسلمان فرض دی۔ او د ټول قرآن
شریف یادول کفایه فرض دی. که هیڅ کس ته قرآن یاد
نه وو۔ نو ټول مسلمانان به گناهکار وی۔ او که په یو کلی کښ
څوک د قرآن شریف لوستونکے نه وی۔ نو د ټول کلی خلق
گناهکار دی۔ ننن لویه نادانی دا ده چه خلق د قرآن شریف
یادول بے فائدے گنړی او د قرآن شریف لفظونه بار
بار د یادولو د پاره وئیل بے وقوفی گنړی۔ او وائي چه داسے
ماغزه خرابیږی۔ او وخت ضائع کوی۔ الله د رحم اوکی
د کم کم مرض به حال او وایم۔ خدا ے مو د مل شی۔

# احادیث

| ۱۱، عَنْ عُثْمَانَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ | د حضرت عثمان |
|---|---|

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَيْرُكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْآنَ وَعَلَّمَهُ ، رواه البخاری وابوداؤد والترمذی والنسائی وابن ماجة هکذا فی الترغیب وعزاه الی مسلم ایضا لکن حکی الحافظ فی الفتح عن ابی العلاء ان مسلما سَكَتَ عنه -

نه خوربنی صدا فرمان نقل دی چه پیدا سوکبش دتولو نه غوره هغه بنده دی چه قران شریف پیخپله جلا کوی او

نورو ته یی وائی -

په ډیرو کتابو نو کښی دا روایت په " واو " سره دی - گویا دی بنده غوره والی په هله راځی - چه هم قران زده کوی او هم یی بل ته ښیی - خو په بعض کتابو نو کښی " او " دی نو په دی صورت کښی به یواځی خُدهٔ کونکی او یواځی خونکی هم د پوره خیر خاوند شی -

د دین اسلام بنا په قران ده - د قران په زده کړه او خونه د دین بقا ده - نو په قران خوره ولو او خُدلا کولو کښی د دین رنړا خوریږی - خُکه دا عمل د تولو نیکو عملونو نه ډیر زیات نیک عمل دی - د قران کامله خُدهٔ کړه خو د قران دا سی خُدهٔ کړه ده - چه د قران غرض او مطلب په معلوم شی او معمولی درجه یی دا ده چه الفاظ قد دی یی زده کی :-

دسعید بن سلیم نه یو روایت دے چه که چاته خدائے د
قرآن علم ورکه - او دهٔ بل څوک دمال دولت خاوند دځان
نه غوره اوګاڼه نو دهٔ دخدائے دلوی انعام قرآن بیعزتی
اوکړه - ځکه چه دقرآن برابر بل انعام کله کیدے شی. او
چه قرآن شریف دټولو انعامونو نه لوی انعام دے - نو دګ
لوسته - اوبل ته څو یقیناً دهر نیک عمل نه غوره ثابت شو
یو بل حدیث ملا علی قاریؒ نقل کړے دے - چه چا چه
دکلام پاک علم حاصل که نو دهٔ دپیغمبری علوم په تندی
کښی جمع کړه - سهل تستری رح وائی چه خدائے سره
دمینے نښه داده چه دخدائے دکلام مینه ددهٔ په زړهٔ کښی
وی :-
په "احیاء" کتاب کښی دهغه خلقو په شمار کښی چه څوک
به دقیامت په هیبتناکه ورځ کښی دعرش دسوری دلاندے
اوسی - هغه اُستاذان هُم ذکر دی. څوک چه بچوته دقرآن
شریف سبق وائی - اوهغه وارهٔ چه په وړوکوالی قرآن
شریف ځدهٔ کوی - او چه لوے شی نو دے بیا ډیر په
عزتونو تلاوت کوی
(۲) عَنْ اَبِیْ سَعِیْدٍ قَالَ قَالَ      دابو سعید رضه نه دخوږ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ      نبی علیه السلام فرمان نقل

يَقُولُ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى
مَنْ شَغَلَهُ الْقُرْاٰنُ عَنْ
ذِكْرِيْ وَمَسْئَلَتِيْ اَعْطَيْتُهٗ
اَفْضَلَ مَا اُعْطِي السَّائِلِيْنَ
وَفَضْلُ كَلَامِ اللّٰهِ عَلٰى
سَائِرِ الْكَلَامِ كَفَضْلِ اللّٰهِ
عَلٰى خَلْقِهٖ (رواه الترمذی
والدارمی)

دے چہ دخدائے فرمان دے
چہ کم بندہ د قرآن دلوستو
پہ وجہ ذکر کولو او دعا غختلو
تہ نہ وی اوزگار نو خہ بہ
دہ تہ دغختونکو نہ زیاتہ بخنہ
اوکم . او دخدائے قرآن پہ
نورو کلامونو داسے لوئی لری
لکہ چہ خدائے دتول مخلوق نہ لوئے
دے .

مطلب دا دے . چہ ښوک دقرآن پہ یادہ ؤلو او پویدلو
پوہ کولو کښی دومرہ آختہ وی چہ دخدائے نہ دخپلو
حاجتونو غختو تہ هُم اوزگارِ نہ وی . نو خدائے وائی چہ خہ
بہ دے دقرآن شغل لرونکی تہ دسوالونو کونکو نہ غورہ برخہ
ورکم .

د دنیا عام لید ونکے خبرہ دہ . چہ پہ بنادوکښ چہ
ښوک خُوا کہ ویشی او یوتن دمالک پہ کار کښ چرتہ ارم
وی . نو مالک ویشونکی تہ وائی . چہ هلکہ دفلانکی برخہ
داویرہ هیر نہ شی . هغہ ما څہ کار تہ لیګلے دے . دغسے دقرآن
پہ شغل کښی لگیا بندہ بہ دخپل حاجت پورہ والے بے سوالہ

پیاموی۔ خدای خو بنده د حاجتونو نه خبر دے۔ وینا
ته حاجت نه لری۔
په یو بل حدیث کښې په دے موقعه کښې ذکر دے۔ چه خدا
به دے قرآن خوان او د قرآن درس ورکونکی ته د شکر
گذارو بندګانو نه غوره ثواب او بخښم۔

(۳) عَنْ عقبة بن عامر قال
خرج رسول الله صلى الله عليه
وَسَلَّمَ وَنَحْنُ فِي الصُّفَّةِ فَقَالَ
أَيُّكُمْ يُحِبُّ أَنْ يَغْدُوَا كُلَّ يَوْمٍ
إِلَى بُطْحَانَ أَوِ الْعَقِيقِ فَيَأْتِيَ
بِنَاقَتَيْنِ كُومَاوَيْنِ فِي غَيْرِ
إِثْمٍ وَلَا قَطِيعَةِ رَحِمٍ فَقُلْنَا
يَا رَسُولَ اللهِ كُلُّنَا يُحِبُّ ذٰلِكَ
قَالَ أَفَلَا يَغْدُوا أَحَدُكُمْ
إِلَى الْمَسَاجِدِ فَيَعْلَمُ أَوْ يَقْرَأُ
آيَتَيْنِ مِنْ كِتَابِ اللهِ خَيْرٌ لَهُ
مِنْ نَاقَتَيْنِ وَثَلٰثٌ خَيْرٌ لَهُ
مِنْ ثَلٰثٍ وَأَرْبَعٌ خَيْرٌ لَهُ مِنْ
أَرْبَعٍ وَمِنْ أَعْدَادِهِنَّ مِنَ

عقبة د عامر ځوی وایی۔
چه خوږ نبی ص راغی او موږ د
صُفه په ډېره ناست وو۔ دی
او فرمایل چه په تاسو کښې څوک
دا خوښوی۔ چه سحر وختی
د بطحان یا د عقیق بازار ته
لاړ شی۔ او دوه اوښې غټه
بے ګناه او بے ظلمه کور ته
راولی؟ اصحابو عرض او کړ
چه دا خو ټول د ټولو خوښه
ده۔ خوږ نبی ص او فرمایل چه څوک
جماعت ته لاړ شی۔ او دوه آیتونه
او وائی۔ یا یے بل ته او ښیی
دا د دوو اوښو او درے

| الْاٰبِلِ (رواه مسلم و ابو داؤد) | اېښونه د درې اوښونه دغسې څلور د څلورونه هوره دی۔ او دغسې نور تر شپږې واخلی |
| --- | --- |

"صفه"۔ د خوږ نبی ﷺ د مدینې په جمات کښې د یوې خاصې ځای نوم دے۔ دلته به د مکې مهاجرین فقیران ناست وو۔ دی په مختلفو وختونو کښې کم زیات شویدی علامه سیوطی رح د دی د نومونو په باره کښې یو کتاب لیکلے دے او د ټولو نومونه یے هُم لیکلی دی۔

"بطحان" او "عقیق"۔ د مدینې منورې په خوا کښې دوه بازارونه دی۔ دلته د اوښانو میله لګی۔ د عربو په وطن کښې اوښ ډیر قیمتی دے۔ خاصکر هغه اوښ چه قُب یے خوږ وی د بے ګناه نه مطلب دا دے۔ چه بے څوارې خواکړ د زور ځیزوی۔ چه د چانه وا غښتے شی۔ یا په میراث کښې د خپلې برخې نه زیاته وا غښتے شی۔ یا د چا نه مال پټ کړے شی۔ نو خوږ نبی ﷺ د دے ټولو نه واله اخو۔ چه بے خوارې او بے ګناه حاصل کړے شی که د ټولې دنیا باچائی شی او چا ته ورکړے شی۔ نو اخر فنا ده۔ ځکه یو ایت د دینه هم بهتر دے چه ثواب د همیشه د پاره دے۔ اوښان عربو ته زیات قیمتی وو۔ ځکه خوږ نبی ﷺ د دے مثال ورکړه۔

په دنیا کښې که یو کس ته یوه روپۍ او بل ته نوددسے
خوشالی به ورته نه زیاته وی - چه ته ده ته زر روپۍ امانت
ورکے - او بیا یې ته واخلے -

خوږ بنی آدم دلته دفانی څیز او دباقی څیز مقابله ښکاره
کوی - او بنده ته وائی - چه ته لږ ځان ته فکر اوکه چه ته
دا دخپل عمر موډری په فانی نکوے که په باقی باندے
او ډیر افسوس بیا په هغه چا دے چه په خپلو ټولو قوتونو
دهمیشه عذابونه گټی - استغفر الله ربی من کل ذنب
واتوب الیه -

دا دایتونو دشمیر د اوښانو دشمیر سره مقابله دپوهے
دپاره ده کنی چه ته اوښان او اوښے او چه ته دقران دایتونو
ثوابونه ؟ دا یو مثالی بیان دے چه دعربو بانه چیانوته
په دے پوهه ورکی - اوښان فنا کیدونکی دی او دفانی
دقران دباقی ایتونو سره مقابله کله کیدے شی -

ملا علی قاری صاحب دیو بزرگ قصه لیکلے ده - چه دده
څه سوداگرو دوستانو مال په جهاز کښې اچولے وو - چه دے
ته دسوداگری دپاره تله - دی دے بزرگ ته اووے چه تاسو
چه دجهاز نه کوز شئ نو په چده کښې څمونږ په خاطراسار
شئ - چه څمونږ په سوداگری کښې ستا څو په برکت کمه اوشی

بزرګ ورته دجدّے د اِسار يدو په باره کښ عذر اوکړ۔ خودی ډير اصرار اوکړ۔ نو دکاريګر ته تپوس اوکړ۔ چه تا سو ډيره ګټه څه ته وايئ ؟ دی ورته اووے چه بر غنګټه لکه په روپئ کښ روپئ ډيره ګټه ده۔ بزرګ ورته اووے چه تا خود دومره بوے فائدے د پاره دومره خواری کوی۔ د دے قدرے ګټے د پاره څه د کعبے مونځونه څرنګ پريږدم۔ هلته خو يو لاکه ثوابونه ورکيدے شی۔ داهغه د مسلمان د فکر ځاے دے۔ چه د دے لږے غوندے دنيوی فائدے د پاره خو مونږ لويه دينی فائده پريږدو۔ په اصل کښ څه مونږ په دنيا يقين دے۔ او د دين په باره کښ بے يقينه يو۔

(۴) عَنْ عَائِشَةَ رض قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ اٰلِهٖ وَسلم اَلْمَاهِرُ بِالْقُرْاٰنِ مَعَ السَّفَرَةِ الْكِرَامِ الْبَرَرَةِ وَ الَّذِیْ يَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ وَ يَتَتَعْتَعُ فِيْهِ وَهُوَ عَلَيْهِ شَاقٌّ لَهٗ اَجْرَانِ (رواه البخاری ومسلم وابوداؤد والترمذی والنسائی وابن ماجه)

عائشه بی بی دخوږ نبی د ا فرمان نقل کوی چه د قران ماهر خلق به د مشرانو نيکونکو ملائکو سره وی او څوک چه په ګختو او تکليف قران وائی۔ د دوی د پاره دوه ثوابه دے

---

دقرآن ماهر هغه څوک دے۔ چه ښه ورته یادوی او
صحیح یې لولی۔ او چه په معنا او مطلب یې پوه وی۔ نو دا
څو کمال مهارت دے۔ او ددے ماهر دملائکو هسے کیدله
ددے دا مطلب دے۔ چه هغنی هم دلوح محفوظ نه دقرآن
نقل اوکه۔ او خوربنی ص ته یې دا کلام ور اورسو۔ او دا ماهر
هم دا قرآن شریف نقل کوی او نوروته یې رسوی۔
نو ددی دوارو کار یو شه۔ یادا چه دا ماهر او دا ملائکے
به په قیامت کښی یو ځائے شی۔

دڅیے مخانته۔ او ده قرآن لوسته دوه محنته دی ځکه
ده ته به دلوستو او دمحنتو دوارو ثواب ورکیدے شی۔
خو دده ثواب دماهر قرآن نه زیات نه دے۔ هغه څو
دقرآن دمهارت په وجه دخاصو ملائکو په ټولکی کښی
اوګرزیده۔ دغسے ملاعلی قاری وائی چه که چا قرآن یاد
وو۔ او ده نه یادیده۔ نو ده هم برغ ثواب دے۔ او
چه سره ددے دقرآن یاد نه پرېږدی ارم وی۔ خواری
کوی نو خدای به ده له حشر دحافظانو دقرآن سره
اوکی۔

(۵) عن ابن عمر قال
قال رسول الله صلی الله

حضرت ابن عمرؓ دخوربنیؐ
دافرمان نقل کوی۔ چه

علیه وسلم لَاحَسَدَ اِلَّا عَلَی اثْنَیْنِ رَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ الْقُرْاٰنَ فَهُوَ یَقُوْمُ بِهٖ اٰنَاءَ اللَّیْلِ وَاٰنَاءَ النَّهَارِ وَرَجُلٌ اٰتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَهُوَ یُنْفِقُ مِنْهُ اٰنَاءَ اللَّیْلِ وَاٰنَاءَ النَّهَارِ (رواه البخاری والترمذی والنسائی)

حسد صرف د دوو تنو سره جائز دے - یو هغه بنده چه قرآن شریف ورته ورکړې او شپه او ورځ د دے تلاوت کوی - او دویم هغه بنده چه چه د الله تعالیٰ خدائے مال ورکړے وی او هغه د دینه شپه او ورځ خدائے لګښت کوی -

~~~~~

د قرآن حدیث نه خو حسد ناجائز والے معلوم دے او دلته د دوو تنو سره حسد جائز معلوم شه - نو علماء دا خلاف داسے لرے کړے دے چه دلته "حسد" د "رشک" په معنے دے چه دیته عربی کښ "غبطه" وائی او په دے دواړو کښ دا فرق دے - چه په حسد کښ دے د نعمت د خاوند نعمت لرے کیدل غواړی - که دا نعمت د دے خواهش کونکی په لاس راشی او که رانشی - او په غبطه کښ دا خواهش کونکے غواړی چه دا په ما کښ را غلے د دے نعمت د خاوند نه که ځی او که نه ځی -

نو حسد خو اتفاقاً حرام دے - دلته مجازاً غبطے ته حسد او یلے شه - غبطه د دنیا په کارونو کښ جائزه ده - او د دین په کارونو بنه خبره ده -
~~~~~

یادا فرضی عوندے خبرہ دہ۔ چہ کہ بالفرض حسد جائز کیدے شی۔ نو ھغہ بہ پہ دیکبش کیدے شی۔ چہ د قرآن تلاوت او د مال سخاوت دے۔

(٦) عَنْ اَبِی موسیٰ قَالَ قَالَ
رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم
مَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِیْ یَقْرَءُ
الْقُرْاٰنَ مَثَلُ الْاُتْرُجَّۃِ رِیْحُھَا
طَیِّبٌ وَّطَعْمُھَا طَیِّبٌ وَّمَثَلُ
الْمُؤْمِنِ الَّذِیْ لَا یَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ
مَثَلُ التَّمْرَۃِ لَا رِیْحَ لَھَا
وَطَعْمُھَا حُلْوٌ۔ وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ
الَّذِیْ لَا یَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ کَمَثَلِ
الْحَنْظَلَۃِ لَیْسَ لَھَا رِیْحٌ وَّطَعْمُھَا
مُرٌّ وَّمَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِیْ
یَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ مَثَلُ
الرَّیْحَانَۃِ رِیْحُھَا طَیِّبٌ وَّطَعْمُھَا
مُرٌّ۔ (رواہ البخاری
ومسلم والنسائی وابن
ماجۃ)

ابو موسیٰ د خوږ نبی دا فرمان
نقل کوی۔ چہ کوم مومن قرآن
شریف لولی۔ د دہ مثال د مالتے
دے۔ خوشبوئی ھم شتہ او
خوندیے ھم ښہ دے۔ او کم
مومن چہ قرآن شریف نہ
وائی۔ د دہ مثال د کھجورے دے
خوشبوئی پکبش نشتہ او خوند
یے ښہ دے۔ او کم منافق چہ
قرآن نہ لولی د دہ مثال د
ترخے اِندوانے دے خوندیے
ترخ دے۔ او خوشبوئی نہ
لری۔ او کم منافق چہ قرآن
وائی۔ د دہ مثال د خوشبوئیہ
گل دے چہ خوشبوئی لری
او خوندیے ترخ دے

خو دبنی ۴ یوندلید و نکے عمل دلید و نکی ځیز په رنګ کښ
خوَل غواری چه په دے دقرآن شریف دلوستلو اوندلوستلو
فرق په اسانتیا بنکاره شی - کنی دکلام پاک خوبدوالے او
خوشبوئی په مالته او کهجوره کښ چرته بیا موندے شی - مالته
په خُلے کښ خوشبوئی پید اکوی - او کیده صفا کوی - هضم
طاقت زیاتوی - دا فائدے دقرآن شریف دلوستو سره خاص
مناسبت لری - ځکه چه هُم دغه صفات په روح کښ د قرآن
دلوستو په وجه پیدا کیږی - او وائی چه د مالتو په وجه
کورته پیریان نه راځی - که دا خبره صحیح وی نو د قرآن
شریف خو دا خاصیت دے - په مالته حافظه یاداشت
زیاتیږی - او په "احیاء" کتاب کښ د حضرت علی رض نه
نقل دے - چه دیاداشت طاقت په درے کارونو زیاتیږی
مسواک ، روجه ، او د قرآن شریف تلاوت -
په ابو داؤد کښ د دے حدیث په آخر کښ یو عجیبه
مضمون دے - چه دښه ناست پاست مرکری مثال د
مشک لرونکی سړی هسے دے - که دے مُشک درنه کی
ولے درله دخوشبوئی نه به خو فائده واخلے - او دناکاره مرکری
مثال دا ور د بهټیٔ هسے دے - چه که تو روالے درته
دراوند رسیده - نو لوخره خو به در باندے خامخا اوکی

نوهرچاته پکار دی چه دخپلو ناستو پاستو مرکرو خیال اوساتی چه څما مرکری بند دی که بد دی۔

۷۱، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ يَرْفَعُ بِهٰذَا الْكِتَابِ أَقْوَامًا وَيَضَعُ بِهِ آخَرِيْنَ (رواه مسلم)

حضرت عمر رض دخوږ نبی نه دا فرمان نقل کوی۔ چه خدای پاک په دی قران ډیر خلق پورته کوی۔ او ډیر خلق په دے ذلیله کوی۔

څوک چه په قران ایمان راوړی او په ده عمل اوکی نو دی به خدائے په دنیا او آخرت کښ عزتمن کی۔ او څوک چه په ده عمل نه کوی نو خدائے پاک به دی خوار او ذلیل کی۔ دقران په دے ایت کښ هم دا مضمون دے چه يُضِلُّ بِهٖ كَثِيْرًا وَّيَهْدِيْ بِهٖ كَثِيْرًا ط خدائے پاک دقران شریف په ذریعه ډیرو ته هدایت کوی او ډیر گمراه کوی۔ دغسے دا ایت وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ وَلَا يَزِيْدُ الظّٰلِمِيْنَ اِلَّا خَسَارًا ط دحضرت فرمان دے چه په دے امت کښ به ډیر منافق قاریان وی۔ دبعض بزرگانو نه په "احیاء" کښ نقل دے۔ چه هرکله یو بنده دقران یو سورة شروع کی نو ملائکے تر فارغ کیدو پورے دده دپاره درحمت دعا شروع کی۔ او بعض خلق چه قران لوستل شروع

کی نو ملائکے ترخمه پورے۔ په ده لعنت وایي۔ دبعض علماء نه نقل دے چه یو بنده قرآن وایي او په ځان لعنت وایي او دے نه پوهیږی۔ لکه په قرآن شریف کښ وایي چه۔ اَلَا لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ٥ اوپخپله دالوستونکے ظالم وی نو دے په ځان لعنت وائی۔ دغسے دے وایي چه لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْكٰذِبِيْنَ او دے دروغجن وی۔ نو گویا دے په ځان لعنت وائی۔

عامر د واثلهؓ ځوی وے۔ چه حضرت عمرؓ نافع د عبد الحارث ځوی دمکے حاکم اوکرځو۔ عمرؓ د ده نه د ځنگل د ناظم متعلق تپوس اُکه۔ ده ورته اوے چه "ابنُ ابزیٰ"۔ حضرت عمرؓ وے دا څوک دے؟ نافع اوے چه دا زما غلام دے۔ حضرت عمرؓ ورته اوے۔ چه تا غلام ولے امیر کرے دے؟ ده ورته اُوے چه دے د قرآن لوستونکے دے۔

حضرت عمرؓ د دے حدیث نقل کونکے دے۔ چه خوږ نبیؐ فرمائلی دی۔ چه الله پاک به د دے کلام په برکت ډیر خلق پورته کی او ډیر به ذلیلان کی۔

(۸) عَنْ عبد الرحمٰن بن عوف عن النبي صلى الله عليه وسلم قال ثَلٰثٌ تَحْتَ الْعَرْشِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ۔ اَلْقُرْاٰنُ يُحَاجُّ

عبد الرحمٰن دعوفؓ ځوی د خوږ نبی ؐ دا فرمان نقل کوی۔ چه درے څیزونه به د قیامت په ورځ د عرش د

الْعِبَادُ لَهٗ ظَهْرٌ وَّبَطْنٌ وَالْاَمَانَةُ وَالرَّحِمُ تُنَادِیْ اَلَا مَنْ وَصَلَنِیْ وَصَلَهُ اللّٰهُ وَمَنْ قَطَعَنِیْ قَطَعَهُ اللّٰهُ ۔

(رواه فی شرح السنة)

لاندے وی۔ یو قرآن شریف چه د خلقو سره به جهگړه کوی د قرآن دپاره ښکاره مخ او پټ مطلب دے۔ دویم امانت دے۔ دریم خپلولی ده۔ دا به چغے وهی چه چا څوک یو ځائے کړے نو الله دے د رحمت سره یو ځائے کړی۔ او چه چا څوک پرے کړے نو خدا دے په رحم او نه کی۔

د دے څیز ونو د عرش د لاندے دکید و مطلب ډیر نژدے والے دے۔ چه دی به د خدائے په دربار کښ ډیر نژدے وی۔ د قرآن شریف د جهګړے دا مطلب دے چه چا د قرآن لحاظ کړے دے۔ د ده حق یے ادا کړے دے۔ په ده یے عمل کړے دے۔ نو قرآن به د دے قسم بنده دپاره د خدائے په دربار کښ جهگړه کوی۔ او د ده به شفاعت کوی د ده مرتبے به په خدائے زیاتوی۔

ملا علی قاری د ترمذی په روایت نقل کړے دے چه قرآن به د خدائے په دربار کښ عرض او کی۔ چه ده ته جوړه ورکه نو خدائے به ده ته د عزت تاج ورکی۔ بیا به قرآن د نور زیات

عزت سوال اوکی - توخدا ے به ورته دعزت پوره جوړه
ورکی - قرآن به بیا درخواست اوکی - چه خدایه! ته دده
بنده نه رضا شے! نوخدا ے به دده نه د رضا اظهار اوکی -
په دنیا کښ دمحبوب د رضا نه لوی نعمت نشته نوبه اخرت
کښ د الله پاک د رضا نه لوی نعمت بل کله کیدے شی؟
اوچا چه دقرآن حق نه دے ادا کړے . نو دده نه به قرآن
مطالبه کوی - چه تا څما کُم لحاظ کړے دے؟ اوتا څما کُم
حق ادا کړے دے؟ د احیاء په شرح کښ دی چه په کال کښ
دوه ګذاره ختم دقرآن شریف حق دے . نواوس ږ هغه
خلق ځان ته فکر اوکی - څوک چه په ډیره هم قرآن ته
په کلونو کوے نه ورو وری تلاوت خوبے پریکده - دی به
په قیامت کښ قرآن شریف ته څه جواب ورکوی؟ مرګه
خوخامخا د راتلو څیز دے - دده نه خو تیخته نه شی کیدے
دقرآن دظاهر نه مطلب ښکاره معنی ده - اویوه یے پټه
معنی ده چه په هغے هرڅوک نه پوهیږی - یا دظاهر نه مطلب
الفاظ دی - او دباطن نه مطلب معنا ګانے دی -

حضرت ابن مسعود رض وایی - چه که علم غواړی نو
دقرآن شریف په معنا کښ غور اوکړی - په قرآن کښ د
مخکنو روستنو علمونه پراته دی - خو دقرآن پاک دمعنی

دپاره چه کُم شرطونه او آداب دي ـ دهغې رعایت ضروري
دے ـ هسې نه چه د اُردو په رسالو لوستو او دعربي په څه
قدر پوهېدو په قرآن شریف کښې خپل وخل شروع
کړي د تفسیر دپاره د پنځلسو علمونو مهارت ضروري ځوئے
شوے دے ـ د قرآن حقیقت ته رسیدل هر بنده نه شي کولے
اول بنده له د عربي لُغت علم پکار دے ـ چه د قرآن
د هر لفظ په معنیٰ پوهیدے شي ـ مجاهدؒ وائي چه څوک په
الله او وقیامت په روځ ایمان لري ـ ده له جائز نه دي چه
بې دعربي لُغت د پېژند ونه په کلام پاک کښې بحثونه کوي
او دیو څو لغاتو په پوهید وهم نه کیږي ـ ځکه چه ډیرګد اره
یو لفظ په ډیرو معنا گانو کښې مشترک وي ـ دے په کښې یو
څو پېژني او دلته مطلب بله معنیٰ وي ـ چه دے تهٔ ادوخبر
نه دے ـ دُوئیم علم نحوه د زور زیر پېښ بدلیدو په معنیٰ
کښې ډیر فرق راځي او دا په علم نحو معلومیږي ـ درېیم
علم صرف دے ـ ځکه چه د جوړښت په اختلاف معنا گانې
جدا کیږي ـ ابن فارس وائي ـ چه چا علم صرف خُدا که نه
که ـ نو د ده نه ډیر څه رُک شو ـ علامه زمخشري په تفسیر
اعجوبات کښې نقل کوي ـ چه یو سړي د قرآن دا اٰیت چه
يَوْمَ نَدْعُوا كُلَّ اُنَاسٍ بِاِمَامِهِمْ ـ په کُمه روځ به

چه هرڅوک د خپل مشر سره را اوغواړو . د صرف د ناواقفيت
په وجه د دې تفسير د الله شويدې . "چه هرڅوک به د خپلو
مېندو سره را اوغوښتې شي . دلته د امام لفظ د اُم جمع
اوګڼله . که دې د صرف نه خبر وې . نو ده به د اُمّ جمع امام
څرنګ ګڼلې . څلورم علم اشتقاق . يو لفظ د دوو مادو
نه جوړ وي او د هر يو معنى جدا جدا وي . لکه مسيح لفظ
د مسح نه وتې دې . د دې معنى لاس راښکلې وي . او د
مَساحَت نه هُم جوړ دې . چه د دې معنى پيمائش دې . پنځم
علم معانى ده . په دې د کلام ترکيبونو د معنى په اعتبار
معلوميږي . شپږم علم بيان دې . چه په د کلام ښکاره
والې پټوالې په تشبيه او په کنايه معلوميږي . اووم علم
بديع دې . په دې د کلام خوبي د تعبير په اعتبار معلوميږي
دې درې واړو علمونو ته علم بلاغت وائي . په دې کښې
مفسر ته ډير ضرورت وي . په دې د کلام اعجاز معلوميږي
اَتم علم قراءة دې . د قراءت په اختلاف په معنى کښې
اختلاف راځي . نهم علم عقائد دې . په دې به دا معلومه
وي . چه د ظاهري معنى خو د خداى د شان مناسب نه ده
په دې کښې خو تاويل په کار دې . لکه يَدُ اللهِ فَوْقَ اَيْدِيْهِم
لسم اصول فقه په دې د استدلال او د مسئلو د اوخکو

وجوهات معلومیږی ـ یوولسم د نزول اسباب په شان
نزول دایت معنی بنه ښکاره شی ـ او اکثرا اصلی معنی په
شان نزول معلومیږی ـ دولسم ناسخ او منسوخ ـ چه
پریښودے او نه پریښودے حکم په معلوم شی ـ دیارلسم
علم فقه چه د جزئیات په ذریعه کلیات معلوم شی څوارلسم
دغه احادیث علم ضروری دے ـ کُم چه د قرآن د مجملو
آیتونو تفسیر کوی ـ دے تولونه پس پنځلسم هغه
خدائی پوهه ده چه خدائے یے بعض خاصو بندګانو
په خاص رحم ورکی ـ لکه په حدیث کښ دیته اشاره ده ـ
چه مَنْ عَمِلَ بِمَا عَلِمَ وَرَّثَهُ اللّٰهُ عِلْمَ مَا لَمْ يَعْلَمْ ـ بنده
چه په خپل علم عمل کوی ـ نو خدائے ورته هغه علم ورکی
چه دے ترا او خبر نه وی ـ دیته حضرت علی رض اشاره کوی
چه خلقو ده نه تپوس اوکه ـ چه تاته څو رنبی م څه خاص
علم درکړے دے؟ یا څه خاص وصیت یے درته کړے دے؟
ده په جواب کښ اُوے چه مُا دِ په هغه خدائے قسم وی چا
چه جنت جوړ کړے دے ـ مُا سخه بغیر د هغے پوهے نه بل څه
خاص علم نشته کمه چه د قرآن د پوهے د پاره خدای ورکوی
دابن ابی الدنیا وینا ده چه د قرآن علمونه او څه چه
دے نه حاصل شی ـ دا داسے سمندر دے چه د دے غاړه

نه معلومیږی - دا بیان شوی علمونه پو اوزاد دے چه دا
علوم نه لری - او تفسیر کوی نو وا سہے به په خپله رائے تفسیر
کوی - او دا تفسیر منع دے - اصحاب خو ده علمونو نه
ھسے واقف وو - او څه علمونه دیته د خور بنی ؐ د خوا د
ناستے اُلا رے نه حاصل شوی وُو - علامه سیوطی ؒ روایي
چه ته یه وایه چه د بخښښی خدا یي علم به کښے د بنده د
قدرت نه باهر وی - خو خبره دا ده چه هر کله په بنده کښې
دا اسباب پیدا شی - چه په خپل علم عمل کوی او د دُنیا
محبت په کښں نه وی - نو ده ته پیا دے خاص علم بخښنه
کیږی - په کیمیائے سعادت ؒ کښں لیکلی دی - چه د قراٰن
شریف علم د رٖے تنه نه شی کولے - اوّل چه د عربي د
علمونو نه خبر نه وی - دوئیم چه لویي په اصرار سره
کوی - یا بدعتی وی - په دے د ده زړه تور شی - نو دے
د قراٰن د معرفت نه عاجزه وی - دریم چه دے په یوه
داسے مسئله عمل کوی - چه هغه د قراٰن نه مخالف وی.
دے د قراٰن د پوهے پرخه نه موی.

| (۹) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عمرو قال قال رسول الله صلے الله علیه وسلم | حضرت عبد الله بن عمرو د خور بنی ؐ فرمان نقل کوی - چه د قیامت په روځ |
|---|---|

يُقَالُ لِصَاحِبِ الْقُرْآنِ اقْرَأْ وَارْتَقِ وَرَتِّلْ كَمَا كُنْتَ تُرَتِّلُ فِي الدُّنْيَا فَإِنَّ مَنْزِلَكَ عِنْدَ آخِرِ آيَةٍ تَقْرَأُهَا (رواه احمد والترمذي وابوداؤد والنسائي وابن ماجه وابن حبان في صحيحه)

به د قرآن خاوند ته اویلے شی چه قرآن لوله ـ او د جنت په منزلونو ورخیجه ـ او ورو روے وایه لکه چه تابه رو روپه دنیا کښ وے ـ ستا مرتبه هغه ده کم چه د قرآن آخیری آیت دے ـ

ـــــــــ

د صاحب قرآن نه مطلب په ظاهر کښ حافظ مطلب وے ـ او ملا علی قاری ؒ دا خبره دیر په تفصیل سره لیکلے ده ـ چه دا لویے د حافظ د پاره ده ـ په قرآن کښ لوستونکے ته مطلب نه دے ـ اول دا چه صاحب قرآن لفظ د ته اشاره کوی ـ دویمه وجه په مسند د احمد کښ روایت دے حَتّٰى يَقْرَأَ شَيْئًا مَعَهُ ـ تر دے چه هغه قرآن اوایی کوم چه د ده سره دے ـ نو دا قرآن خو په واقعات کښ د حافظ سره دے ـ نو هسے احتمال د حافظ نه علاوه دیر قرآن لوستونکی هم کیدے شی ـ ځکه چه دے هم هر وخت د قرآن سره مرکرے وی ـ په مرقاة کښ لیکی

چه د دینه هغه قرآن خوان مطلب نه دے - په چا چه قرآن لعنت
وایی - په دے کښ هغه حدیث ته اشاره ده چه ډیر د قرآن
لوستونکی داسے دی چه هغی قرآن وائی او قرآن په لعنت
وائی - ځکه دچا عقائد چه سم نه وی - نو د دے قسم سړی
ډیر قرآن لوستل د ده د ښه والی دلیل نه دے - د خوارج
په باره کښ ډیر دا قسم احادیث راغلیدی -

د ترتیل په باره کښ شاه عبد العزیز نوّر الله مرقده
په خپل تفسیر کښ لیکی چه ترتیل په لغت کښ صفا
او صحیح لوستلو ته وایی او په شریعت کښ د ډیر خبرو په
تلاوت کښ د رعایت نوم دے

اول چه حرفونه د خپلو ځایونو نه صحیح را اوباسی - چه
د "ط" په ځاے "ت" او د "صاد" په ځاے "ظ" نه وائی -

دوییم چه د وقف په ځاے اودریږی - چه وصل یو
ځاے کیده - او "قطع" پریکول بے ځایه اونشی -

دریم چه زور زیر ښه ښکاره وایی -

څلورم په اوچت آواز ویل چه آواز غوږونو ته ورسی
او د غوږونو په زړه اثر کیږی -

پنځم په دردناک آواز ویل چه د بل په زړه اثر کوی
او په دے روح قوت بیامومی - ځکه طبیبان وایی چه کم

دارو زړه ته رسول مطلب وي. نو په دیکښ دخوشبوئي واچوي. ځکه چه زړه خوشبوئي زر راکاګي. او چه کم دارو زیګرته بوتله مطلب وي. نو په دیکښ دخوابره یوځاے کي ځکه چه زیګر خوړ شیز خوښوي. دغه وجه ده چه که دقرآن لوستو په وخت کښ دخوشبوئي استعمال اوشي. نو په زړه ډیر قوي اثر اوشي.

شپږم چه مدّ اوشدّ ښه ښکاره کي. په دے دقرآن لوئي اواثر ښکاره کیږي.

آووم درحمت او دعذاب دآیتونو حق داداکي. داڅوئ خبرے دي. چه ددے لحاظ ته ترتیل ویلے شي. او ددے هرڅه نه مطلب په قرآن کښ فکرکول دي.

دحضرت ام سلمٰی بي بي رضنه چا تپوس اوکه چه خوړ نبي صلعم په قرآن شریف څرنګ وے؟ دے ورته اووے. چه زور زیر بریے ښه ښکاره کاوُو. او یو یو حرف به یے صفا وے. ترتیل دهغه چا دپاره ویل هم ښه دي. څوک چه دقرآن په معنیٰ نه پوهیږي.

ابن عباس رضه به وے چه څه چه په ترتیل سره سورة القارعه او اذا زلزلت او وایم نو دا بے ترتیله سورة بقره او آل عمران نه غوره ګنړم.

دپرتی حدیث مطلب علماء داسې وايي چه لوى ايت وايه
او لیوه درجه بره خیجه ـ ځکه چه په روایتونو کښ راځی
چه څو مره د قرآن درجې دى ـ دو مره دجنت درجې دى
نو څوک چه د قرآن د څو مره ايتونو ماهر وى ـ دومره به د
جنت مرتبې بیاموى ـ او چه څوک د قرآن د ټولو ايتونو
ماهر وى ـ هغه به دجنت په بره مرتبو کښ وى ـ
ملا علی قاری ليکلی دى ـ چه په حديث کښ راغلی دى
چه د قرآن د لوستونکی نه بره بله مرتبه نشته ـ نو قاريان
به د ايتونو په مقدار ترقی کوى ـ او د قرآن ايتونه شپږ زره
دى ـ او به دے دپاسه ايتونو کښ اختلاف دے ـ داحياء
شرح کښ ليکی چه د هر ايت يوه درجه ده ـ نو قاری ته به
وييلے شی ـ چه دجنت په درجو دخپل تلاوت په مقدار وړ خیجه
څوک چه ټول قرآن اُوايی ـ هغه به دجنت په اعلی درجو
باندے اورسی ـ او چه څه قدرے يے وييلی وى نو د هغے په مقدار
به جنت بیاموى ـ نو معلوم شوه ـ چه څو مره د قرآن
لوستے وى ـ دومره به د ده ترقی وى ـ مولانا زکريا صاحب
فرمائی ـ چه ځما داخيال دے چه د حديث دا مطلب دے
چه که صحيح وى خو د خدا ئے امداد دے ـ او که غلط وى ـ
نو ځما کوتاهی ده ـ

دے وائی چہ د دینہ دکیفیت پہ لحاظ ترقی مطلب دہ۔ چہ
څرنګ دہ پہ دنیا کښ قرآن لوستہ۔ هم پہ دے ترتیل بہ
دے قرآن پہ آخرت کښ لولی۔ او د دے پہ برابر بہ پہ درجو
کښ ترقی وی۔

ملا علی قاریؒ یو حدیث نقل کوی چہ څوک قرآن شریف
پہ دنیا کښ ډیر لولی نو دہ تہ بہ قرآن پہ آخرت کښ هم یاد
وی کنی د دہ نہ بہ هیر شی۔ خدائے دِ فضل اوکی۔ بعض
خلق وی۔ چہ مور پلار ورتہ قرآن پہ ورو کوالی یاد کی۔
مگر دی د خپلے بے پرواهئ پہ وجہ دا یاد پہ دنیا کښ هیر
کی۔ او پہ بعض احادیثو کښ رائی۔ چہ څوک چہ د قرآن
پہ یادولو کښ محنت کوی۔ او د یادہ ولو نہ مخکښ مړ شی۔
نو دے بہ د حافظانو پہ ټولګی پاسی۔ د خدائے مهربانی
ډیرے دی۔ کہ څوک طالب پیدا شی۔

(۱۰) عَنِ ابنِ مسعودٍ قال
قال رسول اللہ صلی اللہ
علیہ وسلم مَنْ قَرَأَ مِنْ
کِتَابِ اللّٰہِ فَلَہٗ بِہٖ حَسَنَۃٌ
وَالْحَسَنَۃُ بِعَشْرِ اَمْثَالِهَا
لَا اَقُوْلُ الٓمّٓ حَرْفٌ

ابن مسعودؓ د خوږ نبیؐ فرمان
دا سے نقل کوی۔ چہ څوک
چہ قرآن یو حرف اولولی
نو دہ تہ بہ د یو حرف پہ بدل
کښ یوہ نیکی ورکیدے شی او دیو
نیکی ثواب بہ د لسو نیکو برابروی

اَلِفٌ حَرْفٌ وَلَامٌ حَرْفٌ وَمِيْمٌ حَرْفٌ (رواه الترمذی وقال هٰذا حدیث حَسَنٌ صحیح غریبٌ اسنادًا و الدارمی)

خُدائ وائیم چہ تول الٓمٓ یو حرف دے - بلکہ الف یو حرف لام بل حرف او میم بل حرف دے -

---

دحدیث مطلب دا دے - چہ پہ نور و اعمالو کښں پورہ عمل یو کنڑلے شی - خو پہ قران شریف کښں دعمل اجزاء هم پورہ عمل گنڑلے شی - ځکہ خدائے بہ پہ یو یو حرف یوہ یوہ نیکی ورکوی او ددے یوے نیکی ثواب بہ دلسو نیکو دثواب برابروی - دا یے کمہ مرتبہ دہ - کہ هغہ او غواړی نو دیښہ دیرچندہ ورکولے شی - خوږ نبیؐ ددے تفصیل کوی چہ "الٓمٓ" ټول یو حرف نہ دے - بلکہ الف، لام، میم، هر یو - یو یو حرف - نو د "الٓمٓ" دیرش نیکی شوے - د دے "الٓمٓ" نہ مطلب یا اَلَمْ تَرَکَیْفَ فَعَلَ رَبُّکَ بِاَصْحَابِ الْفِیْلِ دے - یا دسورۃ بقرے دغہ اول "الٓمٓ" مطلب دے - پہ دے حالت کښں بہ "الٓمٓ" نہ حرفونہ شی - الف لام میم - نو ددے ثواب بہ بیا لس کم دیرش شی - پہ بیهقی کښں لیکی چہ خوږ نبیؐ وائی چہ خُدائ وائیم - چہ بسم اللہ یو حرف دے - بلکہ ب، س، م جدا جدا حرفونہ دی -

(۱۱) عَنْ مُعَاذِ الْجُهَنِیِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَرَأَ الْقُرْاٰنَ وَعَمِلَ بِمَا فِیْهِ اُلْبِسَ وَالِدَاهُ تَاجًا یَوْمَ الْقِیٰمَةِ ضَوْءُهٗ اَحْسَنُ مِنْ ضَوْءِ الشَّمْسِ فِیْ بُیُوْتِ الدُّنْیَا لَوْ کَانَتْ فِیْکُمْ فَمَا ظَنُّکُمْ بِالَّذِیْ عَمِلَ بِهٰذَا (رواه احمد وابوداؤد وصححه الحاکم)

حضرت معاذ جهنیؓ د حضور اکرمؐ دا ارشاد نقل کوی چه څوک قرآن شریف اُوا لی. او په هغې عمل اوکی نو ددٙه مور پلار ته به د قیامت په روځ یو تاج وا غستو لے شی. چه د هغه رڼرا به د نُور د رڼرا نه هُم زیاته وی. که دا نُور ستا څو په کورو نو کښې وی نو ستا سو په هغې سړی څهٔ گمان دے چه د هغه بندٙه په څو مره مرتبه وی چا چه په قرآن عمل کړے دے.

~~~~~~

د قرآن دلوستلو او په دے د عمل کولو دا برکت دے چه د لوستونکی مور و پلار ته تاج په سره کولے شی. دلسے تاج چه د هغه رڼرا د نُور نه هُم زیاته ده. او د آسمان دا لرے رڼرا کونکے نُور نه بلکه چه دا نُور ستا سو په کور کښې دننه وی. د دے نُور رڼرا به بے حده زیاته وی. خو د دے تاج رڼرا به د دے رڼرا نه هُم زیاته وی.

او چه د قرآن لوستونکی د مور پلار دا ثواب دے. نو د دے
~~~~~~

قرآن لوستونکی مرتبے او عزتونه به خو ډیر زیات وی - او دا
نور په کور کښں چه د بندہ سره وی - نو د دہ سره به د کور د خاوندان
ډیره مینه وی - او اول خو په آسمان کښں نور د هر چا د پاره
وُو - او دا نور دیوا ځے د یو سری په ملکیت کښں دے نو خود
به یے ډیر خوښ وی - او په دے به فخر کوی - خو سره د دے
دا تاج به د دے نور نه هم زیات ډیر محبوب او د فخر
څیز وی -

حاکم د بریدہ رض نه د حضور اقدس ص یو ارشاد نقل کوی
چه څوک قرآن شریف لولی او په دے عمل کوی - دہ ته به
د نور نه جوړ تاج په سر کړے شی - او د دہ مور پلار ته به
داسے دوه جوړے واغستولے شی - چه ټوله دنیا به د دے مقابله
نه شی کولے - دا مور پلار به عرض اوکی - چه خدایه! دا څومره
د کُم عمل ثواب دے؟ خدائے به ورته اووائی - چه دا
ستاسو د بچو د قرآن لوستو ثواب دے -

په جمع الفوائد کښں د طبرانی نه نقل دی - چه حضرت
انس رض د حضور اقدس ص نه دا ارشاد نقل کوی - چه څوک
خپل اولاد ته د قرآن لوستل او ښیی نو د دی مخکښں او روستو
گناهونه به معاف شی - او چه قرآن شریف ورته یاد کی نو
دے به د قیامت په روځ د څوارلسم سپوږمکے هسے بریښنا

کوی ۔ او د دٰه خوی ته به اُویلے شی ۔ چه قرآن ویل شروع کړ
چه مچے یے یوٰایت اُوائی نو د پلار مور یوه درجه به سوا شی ۔
تر دے چه تول قرآن شریف پوره اووائی ۔ داخو د قرآن
لوستو په وجه مور پلار ته ثوابونه ورکړے شو ۔ ولے که مور
پلار د دنیا د کټے دپاره اولاد دین نه بے برخے کی ۔ نو دے به
د ثواب نه یو اځے بے برخے نه شی ۔ بلکه د دٰه نه به دے د جواب
غوښتے شی چه داولے ؟ خدائے به ورته وائی چه بنه تا خپل
اولاد ځکه عالم او حافظ نه جوړه وو ۔ چه دے به د جهات
ملا شی او د وډی ته به محتاج شی ۔ نو واوره د دنیا په علم
خو تا دے د عمر دپاره محتاج کړ ۔ او ځان دِ هُم د خدائے جواب
طلبی ته محتاج کړ او س د دوارو دپاره د عذاب فیصله اوشوه
په حدیث کښی راځی چه کُلُّکُمْ رَاعٍ وَّ کُلُّکُمْ مَسْئُوْلٌ عَنْ
رَّعِیَّتِہٖ ۔ د حشر نه به د خپلو کشرانو تپوس کیږی ۔
چه تا دِیته څو مره دین خودلے وو ۔ د عیبونو نه ځان ساته
پکار دی ۔ خو د سپکو په وجه جائے اَغستِه پریخوده نه دی
پکار ۔ کړه تا څو خپلو بچو ته دینداری او ښیئ ۔ نو خپله
غاړه به خلاصه کړی ۔ او تر څو چه دی ژوندی وی دی چه
څو مره نیک عملونه کوی ۔ تا څو ته به دعا گانے کوی ۔ او د ا
به ستا څو د مرتبو د لوئید و ذریعه وی ۔ ولے چه تا څو اولاد

د دُنیا دکتے وختے پہ خاطر د دین نہ بے برخے کری۔ نو یواځے دے سزا د ربانده نہ ده۔ بلکه دے چه ددے بد دینی په وجه خو مره بدکاری او بد عملی کوی۔ دا به ستا خو په عملنامه کښ لیکلے کیږی۔ نو په ځان رحم پکار دے۔ دا دنیا ډیره لږه ده او مرگ ددے آخر دے۔ د دنیا هر تکلیف په مرگ لرے کیږی۔ ولے د کم تکلیف نه پس چه مرگ نشته نو د هغے فکر پکار دے۔ او هغه د آخرت عذابونه دی۔

(۱۲) عَنْ عقبة بن عامر قال سمعتُ رسول الله صلی الله علیه وسلم یَقُولُ لَوْ جُعِلَ الْقُرْاٰنُ فِیْ اِهَابٍ ثُمَّ اُلْقِیَ فِی النَّارِ مَا احْتَرَقَ (رواه الدارمی)

حضرت عقبه وائی۔ چه ما د خوږ نبی م نه اوریدلی دی چه هغی وے چه که قرآن شریف په یوه څرمنه کښ کیخودے شی او په اور کښ او غورزولے شی۔ نو او به نه سوزی۔

د حدیث عالمان په دے کښ دوه خبرے فرمائی یو دا چه د دینه د هرځناور څرمن مطلب ده۔ او د اور نه دُنیا اور دے۔ نو دا د خوږ نبی م د زمانے خاصه د معجزے واقعه ده په نور وزمانو کښ به دا نه وی۔ دویم د څرمنے نه د بنده څرمن مطلب ده۔ او د اور نه مطلب د دوزخ اور دے۔

نو د دے به دا مطلب شی ۔ چه حافظ القرآن که دیو گناه
په وجه په دوزخ کبش او غورزولے شی ۔ لو ددهٔ څرمن به
دقرآن په برکت په دوزخی اور نه سوزی ۔ په یو روایت کبش
دی ۔ چه "مَامَسَّتْهُ النَّارُ" اور به ددهٔ څرمنے ته دا نزدے کیږی
هُم نه ۔ دا ابو امامه رضه روایت چه دشرح السنه ملا علی قاریؒ
نقل کړے دے ۔ ددے دویم معنے تائید کوی ۔ چه دهغے
ترجمه دا ده چه قرآن شریف یاد کړی ۔ ځکه چه خدائے
به هغه زړه نه عذابوی په کُم کبش چه قرآن محفوظ وی
دا حدیث صفا دے ۔ څوک چه دقرآن یاده ول فضولے کنړی
هغی دِ په دے فضائلو غور او کی ۔ دا خو دا سے فضائل دی
چه هر بنده لره په قرآن دقربانید و وینا کوی ۔ ځکه چه بے
گناه خو څوک نشته او گناهگار به اور ته خامخا ځی ۔ نو چه
دقرآن په برکت د اور د لکید و نه بچ کیږی ۔ نو څه او شو
که په اور کبنی او غورزیږی ۔ او په شرح د احیاء کبنی په هغه
شمیر کبش چه دقیامت په هیبتناکه روځ کبش دالله د
سوری لاندے څوک وی دحضرت علی رضه حدیث په
موجب چه دیلمی نقل کړیدے ۔ دقرآن حافظان به هم
دپیغمبرانو او نورو صالحانو سره وی ۔

| (۱۳) عَنْ عَلِیٍّ قَالَ قَالَ | حضرت علی رضه د خوږ بنی م |
|---|---|

رَسُولُ اللّٰہِ صلے اللہ علیہ وسلم مَنْ قَرَأَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَظْهَرَهٗ فَاَحَلَّ حَلَالَهٗ وَحَرَّمَ حَرَامَهٗ اَدْخَلَهُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ وَشَفَّعَهٗ فِيْ عَشْرَةٍ مِّنْ اَهْلِ بَيْتِهٖ (رواہ احمد والترمذی)

فرمان نقل کوی چہ چا چہ قران شریف اُوے اوبیا یے یادکہ ۔ او ددہ حلال حلال اوگنڑل او حرام حرام اوگنڑل نو خدائے بہ دے جنت تہ داخل کی ۔ او ددہ شفاعۃ بہ دخپل کور دلسو تنو دپارہ قبولی ھغہ کسان چہ دوی دجہنم دپارہ فیصلہ شوے وی ۔

---

دھر مؤمن دپارہ دسزا نہ پس اٰخرکار جنت تہ تلہ خو منلے شوے خبرہ دہ ۔ خو د حافظانو دپارہ دا فضیلت د اول داخلیدو پہ وخت کنبں دے ۔ چہ دی بہ د فاسقانو لسو تنو شفاعت اوکی ۔ حکم چہ دکافرانو دپارہ خو شفاعۃ دسرہ نشتہ قران ، اِنَّهٗ مَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَمَاْوٰىهُ النَّارُ وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ (ترجمہ) پہ مشرکانو اللہ جنت حرام کرے دے ۔ او ظالمانو خوک مددگار نشتہ ۔ بل ځائے خدائے فرمائی ۔ مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ ۔ پیغمبر او مؤمنانو تہ ندی پکار

چه دی د مشرکانو د پاره بخښنه او غواړی.

نو د مشرکانو بخښنه نشته - ځکه حافظان به د هغې گنهگارو شفاعت کوی - څوک چه د دوزخ د تلو د گناه په وجه قابل شو. نو څوک چه د دوزخ نه ځان بچ کول غواړی د هغی د پاره ضروری ده چه که بچپله قرآن نه شی یاده ولے - نو په خپل ځای دے خپلوان د قرآن یاد کی - چه د ده په برکت د خپلو بد عملو د سزا نه بچ شی - دا څومره د خدای نه لوی انعام دے - چه د چا پلار، تره، ماما، نیکه حافظان وی

(۱۴) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صلی الله علیه وسلم تَعَلَّمُوا الْقُرْاٰنَ فَاقْرَءُوْهُ فَاِنَّ مَثَلَ الْقُرْاٰنِ لِمَنْ تَعَلَّمَ فَقَرَاَ وَقَامَ بِهٖ كَمَثَلِ جِرَابٍ مَحْشُوٍّ مِسْكًا تَفُوْحُ رِيْحُهٗ كُلَّ مَكَانٍ وَمَثَلُ مَنْ تَعَلَّمَهٗ فَرَقَدَ وَهُوَ فِيْ جَوْفِهٖ كَمَثَلِ جِرَابٍ اُوْكِئَ عَلٰى مِسْكٍ (رواه

حضرت ابوهریره د خوږ نبی ﷺ دا فرمان نقل کوی - چه قرآن شریف زده کړی بیا یې وایئ - ځکه چه څوک قرآن ځده کی - او دا وایی - او په تهجد کښ وایی نو د ده مثال د هغې تهیلی دے - چه د مشکو نه ډکه وی - او د دے خوشبویی په ټول کور کښ خوره وی - او چا چه قرآن زده که او بیا اوده شه - نو دا

الترمذی ۔) | شه ۔ نو دا بنده تھیلی ده ۔

"گویا څوک چه قرآن شریف وایی او د شپے په مونځونو کښی د دے تلاوت کوی ۔ نو د دے مثال د پرانستے هغے تهیلی هسے دے ۔ چه په دے کښی مشک عنبر وی ۔ په دے ټول مکان خوشبویه وی ۔ د غسے د حافظ په لوستو ټول مکان د انوارو او د برکاتو نه ډک وی ۔ او که د احافظ اوده شی ۔ یا د غفلت په وجه قرآن نه وایی ۔ نو د ده د ازړه خو د مشکو نه ډک دے ۔ د دے غفلت په وجه دا نقصان او شه چه نورو ته ئے فائده او نه رسیده ۔ بخپله خو ئے په مشکو کښی خوشبویه پروت دے ۔

(۱۵) عَنِ ابنِ عباسٍ قَالَ قال رسول الله صلے الله علیه وسلم اِنَّ الَّذِیْ لیس فِیْ جَوْفِهٖ شَیْءٌ مِّنَ الْقُرْاٰنِ کَالْبَیْتِ الْخَرِبِ (رواه الترمذی)

حضرت ابن عباسؓ د خوږ نبیؐ نه دا فرمان نقل کوی چه د چا په زړه کښی چه د قرآن هیڅ حصه محفوظه نه وی ۔ نو د دے دوران کور هسے دے ۔

د وُران کور سره په تشبیه کښی دا غرض دے ۔ چه په کهنډرونو کښی پیریان دیوان اوسیگی ۔ نو د قرآن نه په خالی زړه کښی شیطانان اوسیږی او دے بنده په غلطو

لاروبیایي - په دے حدیث کښ دقرآن زیاده ولوستو مره تاکید دے چه گویا دلته یے وران کهنهر اوے - حضرت ابو هریره رض وایي چه په کوم کور کښ قرآن لوستے شي په دے کور کښ اهل وعیال زیاتیږی - په دے کور کښ خیر او برکتونه زیات وی - په دے کښ ملائکے نازلیږی - او شیطانان دے کور نه تختی - او چه په کم کور کښ تلاوت نه کیږی نو په دیکښ تنگی او بے برکتی وی - ملائکے دے کور ته نه ځی شیطانان پکښ داخلیږی -

دحضرت ابن مسعود نه نقل دے - او بعض خلق دا دخوږ بنی ص نه نقل کوی - چه خالی کور هغه دے - چه په هغے کښ دقرآن شریف تلاوت نه کیږی -

(۱۶) عَنْ عائشۃ ان النبی صلی الله علیه وسلم قَالَ قِرَاءَةُ الْقُرْاٰنِ فِي الصَّلٰوةِ اَفْضَلُ مِنْ قِرَاءَةِ الْقُرْاٰنِ فِي غَيْرِ الصَّلٰوةِ وَقِرَاءَةُ الْقُرْاٰنِ فِي غَيْرِ الصَّلٰوةِ اَفْضَلُ مِنَ التَّسْبِيْحِ وَالتَّكْبِيْرِ وَالتَّسْبِيْحُ

حضرت عائشه رض دخوږ بنی ص نه دا فرمان نقل کوی - چه په مانځه کښ قرآن لوستل د باهر دمانځه نه غوره دی او قرآن باهر دمانځه نه لوستل د سبحان الله او الله اکبر نه غوره دی - او سبحان الله ویل د خیرات نه غوره دی او

| | |
|---|---|
| اَفْضَلُ مِنَ الصَّدَقَةِ وَ الصَّدَقَۃُ اَفْضَلُ مِنَ الصَّوْمِ وَالصَّوْمُ جُنَّۃٌ مِنَ النَّارِ (رواہ البیہقی فی شعب الایمان) | خیرات کول د روژے نه غوره دی او روژه داورنه د بچ کید و دپاره یو ډال دے |

د قرآن د لوستو ذکر نه غوره والے خوښکاره دے۔ ځکه چه دا د خدائے کلام دے۔ او د خدائے کلام په ټولو کلامونو د اسے لوے دے لکه الله چه په مخلوق لوی دے۔ دالله د ذکر غوره والے د خیرات نه په نورو روایاتو کښې هم راغلے دے۔ خو د خیرات د روژے نه غوره والے د بعض روایات نه خلاف دے۔ ځکه چه په نورو روایاتو کښې د روژے غوره والے راغلے دے۔ خو دا به خوبني م د مختلف حالاتو په لحاظ سره فرمائیلے وی۔ د شوم دپاره د خیرات غوره والے او خوښے شه او د خوان مست دپاره روژه نیول غوره ښکاره کړے شو۔ او چه روژه بنده د اورنه بچ کوی۔ نو قرآن چه د هغه د رجه د ټولو نه مخکښې دے دا به د اورنه د بچ کیدو شومره ښه ذریعه وی۔ صاحب احیا د حضرت علی رض نه نقل کوی۔ چه چا په مانځه کښې قرآن په اولاړے اولوسته نو ده ته به په هر حرف سل نیکی ملاوشی۔ او چا چه به مانځه کښې په ناست قرآن اولوسته۔ نو ده ته به پنځوس نیکئ ورکړے شی۔ او چا چه د

ما نځه نه باهر په او دس کښې قرآن او لوستلو نو دده دپاره پنځوس نیکۍ دي - او چا چه بې اودسه او لوستلو - نو دده دپاره لس نیکۍ دي - او څوک چه قرآن شریف دیلې چانه اوري نو ده ته به د هر حرف په بدل کښې یوه نیکي ورکیدے شي .

(۱۷) عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُحِبُّ اَحَدُكُمْ اِذَا رَجَعَ اِلٰى اَهْلِهِ اَنْ يَّجِدَ فِيْهِ ثَلٰثَ خَلِفَاتٍ عِظَامٍ سِمَانٍ قُلْنَا نَعَمْ قَالَ فَثَلٰثُ اٰيَاتٍ يَقْرَأُ بِهِنَّ اَحَدُكُمْ فِيْ صَلٰوتِهٖ خَيْرٌ لَّهٗ مِنْ ثَلٰثِ خَلِفَاتٍ عِظَامٍ وَسِمَانٍ (رواه مسلم)

حضرت ابو هریرهؓ وائي چه خوږ نبي ؐ فرمایلي دي چه ایا تاسو دا خوښوی چه یو بنده کور ته راشي او په کور کښې درې بلاربې اوښه او غټې کټې ده ته پیا مونده شي . مونږ اووے چه دا خوخونږ خوښه ده - خوږ نبي ؐ اووے چه څوک درے ایتونه په مانځه کښې اووائي دا د درے بلاربو غټو او خوښه ښه دي -

---

د احدیث د حدیث ۱۳ سره یو شان دے - هلته د مانځه ذکر نشته - دلته په مانځه کښې د قرآن لوستو ذکر دے ځکه دلته قرآن د بلاربو او خوښے اوښے شه - دلته دوه عبادتونه دي مونځ - او قرآن شریف نو دغسې درے مثال په اوښه

او بلا ربه اُوښه ورکړے شه - او دا دیو ھے دپاره یو مثال قدرے دے ـ کنی دیروایت باقی پاتے کیدونکی ثواب دزرګونو فانی اوخو نه زیات دے -

(۱۸) عن عثمان بن عبد الله بن اَوسِ الثقفی عَنْ جَدِّہٖ قَالَ قَالَ رسول الله صلّی الله علیه وسلم قِرَاءَةُ الرَّجُلِ الْقُرْاٰنَ فِیْ غَیْرِ الْمُصْحَفِ تَضْعَفُ عَلٰی ذٰلِكَ اِلٰی اَلْفَیْ دَرَجَةٍ رواہ البیهقی فی شعب الایمان -

عثمان بن عبد الله بن اَوس ثقفی دخوږ نبی م نه نقل کوی چه دی وے چه قران په یادلوسته زر درجے ثواب لری او په قران کښ لوسته تر دوو زرو پورے زیاتیږی -

دحافظ قران ډیرفضائل تیرشو - دلته په قران کښ د لوستوزیات ثواب په دے وجه اوخوے شه - چه په قران کتو دفکرکولو موقعه ملاویګی - او دقران کتو اومسه کولو موقعه بیامومی - دغه وجه دا چه په قران کښ په لوستوکښ دغلطی نه بنده ډیره مح وی - قران ته کوږی - نو په قران کښ لوسته دیادنه بنه وی - او څوک وائي چه په یادوکښ ریا نه وی - اوخوږ نبی م په یادولوسته کړی دی - حُکم په یادلوسته

ښه دی. امام نووی والی چه دا فیصله به د لوستونکو په لحاظ کیږی. چه څوک په قرآن پوهیږی او په قرآن کښې فکر کولے شی. نو دغه د پاره په قرآن کښې لوستل ښه دی. او څوک چه په یاد باندے په قرآن کښې ښه معنا کانو ته فکر کولے شی نو دغه دِ قرآن په یادو والی. والی چه حضرت عثمانؓ ډیر قرآن لوستو په وجه دوه قرآن شریفونه شلولی وو. عمر بن میمون د احیاء په شرح کښې نقل کوی. چه کوم سړے د سحر د مانځه نه روستو قرآن پرانځی او سل آیتونه اُوائی نو د ټولے دنیا د اشیاء په مقدار به ده ته ثواب ورکړے شی د قرآن شریف په کتو لوستل د نظر د ښه والی د پاره فائده من دی. ابو عبید مسلسل حدیث نقل کړے دے چه هر راوی والی. چه څومره سترگے خوږیدے نو اُستاذ راته اووے. چه قرآن شریف ته گوره. او داوایه. حضرت امام شافعیؒ به ډیر گذاره د ماسخوتن نه روستو قرآن پرانسته او د سحر د مانځه د پاره به ئے بند که.

(۱۹) عَنِ ابن عمر قَالَ قَالَ رسول الله صلّی الله علیہ وسلم اِنَّ هٰذه القُلُوْبَ تَصْدَأُ كَمَا يَصْدَأُ

حضرت ابن عمرؓ د خوږ نبی علیه السلام نه نقل کوی. چه په زړونو هُم زنګ لګی. لکه او سپنه

اَلْحَدِيْدُ إِذَا اَصَابَهُ الْمَآءُ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَمَا جَلَاؤُهَا قَالَ كَثْرَةُ ذِكْرِ الْمَوْتِ وَتِلَاوَةُ الْقُرْاٰنِ

رواه البيهقي في شعب الايمان

چه په اوبو کېښ زنګ اخلي تپوس اُشه چه حضور ددې دصفائي څه صورت دے ؟ خور بنې م اوے چه مرګ ډېر یاده ول او دقرآن شریف لوستل -

د ډېرو ګناهونو او دخدای نه دغفلت په وجه هم زړونه نکي - او دا زړونه دکلام پاک په تلاوة او دمرګ په یاد کېدو صفا کیږي - زړه دا سپینې هسې دے شومره چه دا خرپړوي دومره به په ده دخدای دېچند کلو رڼا اندغور زیږي او چې څومره صفاوي - نو دومره به په ده ښه رڼا غورزیږي - څومره چه بنده دشهوة او شیطاني په ګناهونو کښ ګرفتار وي - دومره به دخدای دېچند کلونه لرے وي - ددے دپاره دتصوف مشران په چیلو او نورو تبلیغي ګشتونو او ذکرونو دا زړه پاکوي - په احادیثو کښ راځي چه هرکله یو بنده یو ګناه اوکي - نو ده په زړه یو تور ځاځکے اوشي - که ده ښه توبه اوخکه نو هغه ځاځکے رُک شي - او که بل ګناه اوکه نو بل ټکے په اوشي - دغسے چه څومره نور ګناهونه کوي نو داتورټکي ډېرېږي - تر دے چه دا زړه یے تور تبخے شي -

بیا په دے زړه کښې د خیر طرف ته اړو شوق نه پیدا کیږی۔
بلکه دے د گناه، نافرمانئ او د هر قسم بدکارئ شوقونه لری
اللهم احفظنا منه یاحافظ (خدایه! ته مونږ تول بچ کړے)
د دے طرف ته د قرآن پاک دا آیت اشاره کوی۔ چه کَلَّا بَلْ
رَانَ عَلٰی قُلُوْبِهِمْ مَّا کَانُوْا یَکْسِبُوْنَ ه بے شکه ددی په زړونو
بدعملو زنګونه او خیږول۔ په یو حدیث کښې راغلی چه حضور
اقدس فرمایلی دی۔ خدا تا خوته دوه واعظان پریکړم۔ یو
ویونکے دویم چپ۔ ویونکے قرآن شریف دے۔ او چپ د مرګ
یاد دے۔ د خوږ نبیؐ فرمان په سر سترګو خو دا به د هغه چا د
پاره واعظان شی۔ چه نصیحت قبلوی۔ او ځان ته د نصیحت
ضرورت ګڼړی۔ کم ځایے چه دین بیکاره ګڼړلے شی او د ترقی
په لار کښې دین دیوال ګڼړی۔ هلته د نصیحت ضرورت چرته
دے۔ او دیته به نصیحت څه فائده ورکی!

حسن بصری رح وائی چه مخکنو خلقو به قرآن د خدائے
فرمان ګانړه شپه او روځ به ئے په ده کښې غور و نه او فکرونه
کول۔ او د روځے به ئے په ده عمل کاوو۔ او تا خو خلق د
قرآن حرفونه زَوَر، زیر خو ډیر سمه وَی۔ خو دا د خدائے
باچا یا چائی فرمان نه ګڼړی او په ده کښې فکر نه کوی۔

| حضرت عائشه رض د خوږ | (۲۰) عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ |
|---|---|

قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ لِكُلِّ شَیْءٍ شَرَفًا يَتَبَاهُونَ بِهٖ وَاِنَّ بَهَاءَ اُمَّتِیْ وَشَرَفُهَا الْقُرْاٰنُ رواه فی الحلیة

نبی علیه الصلوٰة والسلام دا فرمان نقل کوی چه دهر څیز دپاره څه شرافت او لوئی وی. چه په دے فخر کوی. څما دا امت لوئی او دَول یه په قران شریف وی

نور خلق به په پلرونو خاندانونو لوئی کوی. او څما دامت د لوئی ذریعه به د قران لوستل وی. دده یاده ول لُو لول، او په ده عمل به کول وی. او ولے به نه وی چه قران د محبوب کلام دے. د دُنیا د څیزونو ټول شرافتونه دده په مقابله کښ هیڅ دی. ځکه چه دا به کدنن نه وی صبا ته به فنا شی. او د قران شرافت ابدی دے. د قران بند جوړښت دالفاظو کورے مناسبت د تیرو زمانو واقعات دا تلونکے خبرے ټولے صحیح نا قابل تردید دی. لکه خدائے د یهود په باره کښ فرمائی چه دی به د مرګ محبت نه کوی سره د دے چه جنت یوائے د ځان ګنړی

د قران اوریدونکے او ویونکے دواړه د پر ځان خوشاله وینی د قران په بار بار لوستو ستومانتیا نه راتله. ټول عمر یے وایه هره ورځ وایه هیڅ کله په دے زړه خفه نه دے. خو مزه خو مزه

چه قرآن ویروایی دومره دومره یی په خوند کښی زیاتے راځی - په دا سے کلام که دخوږ نبیؑ امتیان فخراوکی - نو دا په ځائے فخر دے - خویره ځان ته هم فکر پکار دے - چه مونږ کښی به څومره خلق وی - چه دځان په حافظ والی به فخر او خوشالی کوی؟ یامونږ دحافظ قرآن څومره دعزت خاوندګنړو؟ څمونږ خوټول شرافتونه او عزتونه په اوچتو اوچتو ډګرو کښی دی - په لویو لویو لقبونو دیئوی جاه و جلال او دمرک نه پس په پاتے مال و دولت کښی دی - الله دِ را باندے رحم اوکی -

(۱۳) عَنْ اَبِی ذَرٍ قَالَ قُلْتُ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَوْصِنِیْ قَالَ عَلَیْكَ بِتَقْوٰے اللّٰهِ فَاِنَّهٗ رَاْسُ الْاَمْرِ كُلِّهٖ قُلْتُ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ زِدْنِیْ قَالَ عَلَیْكَ بِتِلَاوَةِ الْقُرْاٰنِ فَاِنَّهٗ نُوْرٌ لَّكَ فِی الْاَرْضِ وَذُخْرٌ لَّكَ فِی السَّمَآءِ رواه ابن حبان فی صحیحه -

حضرت ابوذرؓ وائی چه ما خوږ نبیؑ علیه السلام ته اووے چه ما ته څه وصیت اکړی! خوږ نبیؑ راته اُووے چه دخدای نه ویره کوه! دا دټولو کارونو ویخ دے - ما ورته عرض اوکه چه نور څه راته هم اُوایئ - وے دی راته اُو چه دقرآن دلوستو انتظام اوکه چه دا په دنیا کښی نور دے او په آخرت کښی ذخیره ده -

"تقوٰی" د خدائے وِیَرہ چہ دچا پہ زړہ کښې وی نو د گناہ نہ

هیڅ گناہ نہ کیږی - او نہ پہ دہ څہ تنگی راځی - وَمَنْ یَّتَّقِ

اللّٰہَ یَجْعَلْ لَّہٗ مَخْرَجًا وَّیَرْزُقْہُ مِنْ حَیْثُ لَا یَحْتَسِبُ څوک

چہ د خدائے نہ یَریږی خدائے پہ هرہ تنگی کښې د دہ دپارہ

لار اوباسی - او دہ تہ د هغے ائرخ نہ روزی ورکی چہ د دہ اُهو

د دے گمان نہ وی -

پہ شرح د احیاء او ترغیب کښې د قرآن د نُور پہ بارہ کښې

لیکی چہ پہ کم کور کښې قرآن لوستے شی نو دا کور برہ پہ آسمانونو

کښې دستورو هسے ښکاری - او پہ دے حدیث کښې دا خبرے

هم دی - چہ ابوذر رض وائی چہ ما د خوږ نبی ص نہ د ټولو آسمانی

کتابونو پہ بارہ کښې - تپوس اوکړ - نو دی راتہ اُوے چہ سل

صحیفے - او څلور کتابونہ دی - پنځوس صحیفے پہ شیث باندے

او دیرش پہ حضرت ادریس باندے - اولس پہ حضرت ابراهیم

باندے - اولس پہ حضرت موسیٰ باندے د تورات نہ مخکښې

او څلور کتابونہ تورات انجیل، زبور او قرآن شریف - ابوذر رض

وائی ما عرض اوکړ چہ د ابراهیم ع پہ صحیفو کښې څہ تعلیم وُو.

دی راتہ اوے چہ هغہ خو مثالونہ وُو - لکہ وائی چہ

اے زورا ورہ مغرورہ باچا! ما تہ د دے دپارہ نہ وے لیږلے

چہ تہ د پیسہ پیسہ جمع کوے - ما خو تہ د دے دپارہ لیږلے وے

چه ته دَ مظلومانو فریاد اورے اگر که دے کافروی. (او دغه خبره وه چه خوږ بنی م په خپلو امیرانو ته ددے خاص نصیحت کاووَ) یو شاعر ددے په باره کښ وائی.

**شعر**

بترس از آهِ مظلومان که هنگام دعا کردن
اجابت از درِ حق بهرِ استقبال مے آید.

بل په دے صحیفو کښ دا هم وو. چه که ته لیونے نه یے نو خپل وختونه په درے حصو تقسیم که. په یوه حصه کښ د رب عبادت کوه. او په یوه کښ د خپل نفس سره حساب کوه چه دے څومره ښه او څومره بد کارونه اوکړه. او په یوه حصه کښ حلال کسب کوه. د عقلمنے اختیار به د خپلو اوقاتو حفاظت کوی. خپله جبه به قابو ساتی. بے فائدے خبرے به نه کوی. او دے به سفر صرف ددے د پاره کوی چه دے پکښ د آخرت توښه جوړه وی. یا روزی کټی یا جائز سیل کوی. ابو ذر رض وائی چه ما تر د مومنی ۲ د صحیفو تعلیم تپوس اُکه. دی راته اُوے چه دی خود عبرت نه ډکے دی. لکه په دے کښ دی. چه څه په هغه بنده تعجب کوم چه په مرګ یقین لری او دے بیا هم په څه خوشالئ خوشالیږی. دسُولئ په کوټه کښ بند په څه خوشالیدی شی؟ هیڅ کله نه! څه تعجب کوم په هغه چا چه ده په مرګ یقین وی. او بیا هم خاندی. څه تعجب کوم په هغه چا چه دے د دُنیا

قسم قسم انقلابات ورانيده وېجاړيده وينى او دے بيا هم
په دنيا کښې د تسلى جوند تېره وى. څه تعجب کوم. په هغه چا
چه دے تقديرمنى او بيا هم دے په رنځونوکښې مبتلا وى.
څه تعجب کوم. په هغه چا چه دے د حساب وکتاب يقين لرى
او نيک عملونه نه کوى" ما ورته عرض اوکه چه ما ته څه وصيت
اوکه. نو هغى راته د تقوىٰ د پاره اُوے. او راته يے اُوے چه
تقوىٰ د ټولو کارونو وېخ دے. ما وے نور راته زيات څه
او وايئ! دى راته اُوے. چه د قرآن شريف تلاوت کوه. دے
په دنيا کښې رڼړا ده. او په آسمان کښې ذخيره ده. ما ورته د
نُور اوے. نو دى راته اوے چه ډېره خندا مکوه. په دے
زړه مړ کيږى. او د مخ سره په ځى. ګويا ظاهر او باطن دواړه
خرابوى. ما وے نُور راته او وايئ. دى راته اوے د جهاد
انتظام کوه. دا ځما د امت د دُنيا تعلق پرېخوده دى. ما وے
نور راته او وايئ. دى راته اُوے د فقيرانو عاجزانو سره
مينه، محبت کوه. د دى سخه کينه. ما وے نور. دى راته اُوے
د ځان نه کم ته ګوره. چه د خدائے شکريه اداکے. او د ځان
نه بَرْته مه ګوره. هسے نه د خداى د در کړى نعمت ناشکرى
اوکے. ما وے نور. دى راته اُوے چه د ځان عيبونو ته
ګوره چه د نورو خلقو د عيبونو نه خلاص شے. او په نورو

کښې هغه عیبونه مه لټوه. چه هغه په تا کښې هم دی. بیا یې خپل
لاس مبارک خما په سینه اُواهه. او راته یې اُوې. د تدبیر
برابر بله عقلمندی نشته. او د ناجائزو نه د بچ کیدو برابر
تقوی نشته. او د ښه خوی برابر شرافت نشته.

(۲۲) عَنْ اَبِی هُرَیْرَةَ اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صلی الله علیه وسلم قَالَ مَا اجْتَمَعَ قَوْمٌ فِی بَیْتٍ مِّنْ بُیُوْتِ اللهِ یَتْلُوْنَ کِتَابَ اللهِ وَیَتَدَارَسُوْنَهٗ بَیْنَهُمْ اِلَّا نَزَلَتْ عَلَیْهِمُ السَّکِیْنَةُ وَغَشِیَتْهُمُ الرَّحْمَةُ وَ حَفَّتْهُمُ الْمَلٰئِکَةُ وَذَکَرَهُمُ اللهُ فِیْ مَنْ عِنْدَهٗ
رواه مسلم و ابوداؤد

حضرت ابوهریره رض د حضور اقدس صلعم نه دا فرمان نقل کوی چه هریو قوم چه په یو کور کښې راجمع شی. او هلته قرآن لولی. او د هغې درس تدریس کوی. نو دی د خدای د رحمت په کینره کښې وی. او د دینه چاپیره د رحمت ملائکې اولاړې وی. او خدای ددې ذکر د ملائکو په مجلس کښې کوی

په دې حدیث کښې د اسلامی مدرسو خاص فضیلت اُوښے
شه. چه دا ډیرو عزتونو شرافتونو مقامات دی. د دې
عزتونو لټه که د ټول عمر په لګښت اوشی نو دا هم ارزانه ده
او د ټولو نه لوی انعام پکښې دا دې. چه د دې مجلس ذکر
خدای د ملائکو په مجلسونو کښې کوی.

حضرت علی رضہ د سکینے مطلب یو خاصہ هوا وائی۔ علامہ
سدی ہم وائی۔ چہ دا د جنت د سرو زرو د طباخ نوم دے
پہ دیکښ د پیغمبران زړونو تہ غسل ورکیدے شی۔ بعض
دا پہ رحمتونو کښ یو خاص رحمت تہ وائی ۔طبریؒ وائی
چہ دا د زړہ تسلی تہ وائی ۔ څوک وائی چہ دا ملائکہ دہ ۔ د فتح
الباری مصنف حافظ صاحبؒ وائی ۔ چہ پہ دے ټولو د سکینے
لفظ صادقیږی ۔ پہ کلام اللہ کښ ارشاد دے ۔ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ
سَكِيْنَتَهٗ عَلَيْهِ ۔ بل ځائے ارشاد دے ۔ هُوَالَّذِیْٓ اَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ
فِیْ قُلُوْبِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۔ بل ځائے داسے ارشاد دے ۔ فِيْهِ سَكِيْنَةٌ
مِّنْ رَّبِّكُمْ ۔ پہ ډیرو روایتونو او روایاتو کښ د سکینے ذکر
دے ۔ پہ احیاء کښ نقل دے ۔ چہ ابن ثوبان د یو خپلوان
سرہ د روجہ ماتی پہ وخت کښی د راتلو وعدہ او کړہ خو د د
پہ ځائے ورسخر سحر لا رہ ۔ هغہ شکایت او کہ ۔ ابن ثوبانؒ
ورتہ اوے چہ خُدا او کم کہ خُما د سرہ وعدہ نہ وے نوما بہ
درتہ حال نہ وو ویلے ۔ خبرہ داسے دہ ۔ چہ اتفاقاً ځما
اِسار شوم ۔ د ماسخوتن د ماځہ وخت راغے ۔ خیال مے او کہ
چہ وِتر هم کوم ۔ معلوم نہ دہ کہ پہ دے شپہ کښ مرشم
نو ما دعاء قنوت وے چہ ځہ کورم ما تہ د جنت یو باغ پہ نظر
راغے ۔ پہ دے کښ هر قسم گلونہ دی ۔ ځہ دے پہ کتو کښ داسے

روب پاتے شوم - چہ سحر شہ دا قسم ډیر واقعات د بزرګانو په واقعاتو کښې راغلیدی - خو دا په هغه چا راځی چه د دُنیا نه قطع شی او ټول هال د خدائے شی -

د اُسید بن حضیر رض واقعه د احادیثو په کتابونو کښې راغلې ده چه ده د قران تلاوت کاوُو - او ده د وریځې چتر په ځان د پاسه اولیده - خوږ نبی ع ورته اووے چه دا خو ملائکے د قران شریف د اوریدو د پاره راجمع وے - او دا دی ګنړه وه - یو صحابی شه وریځ غوندے اولیده نو خوږ نبی ع ورته اُوے - چه دا خو سکینه ده - دا د قران په وجه د رحمت نزول دے - د حدیث په آخر کښې دا ویناده چه څوک ګناهونه د خدائے نه لرے کی - نو په بنده تهبر والی د خدائے رحمت ته نه شی نژدے کیدے - یو خاندانی شریف چه په ګناهونو کښې اخته وی دے د هغې د نیوی خاندانی کمین سره برابر تیا نه شی کولے کم چه متقی او پرهیزګار وی - خدای وائی - اِنَّ اَکْرَمَکُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰکُمْ - په تا خو کښې شریف هغه دے چه د خدائے نه یریږدی -

(۲۳) عَنْ اَبِیْ ذَرٍّ قَالَ قَالَ رسول الله صلے الله علیه و سَلَّمَ اِنَّکُمْ لَا تَرْجِعُوْنَ

حضرت ابوذر رض د خوږ نبی ع علیه الصلوٰة والسلا ارشاد نقل کوی - چه تا خو خدائے ته

إِلَى اللّٰهِ بِشَيْءٍ أَفْضَلَ مِمَّا خَرَجَ مِنْهُ يَعْنِي الْقُرْآنَ (رواه الحاكم وصححه ابو داؤد)

نزدے والے پہ بل هیڅ څیز دومره نشی حاصلولے څومره چه دا په هغه قران حاصلولے شی. کم چه د خدائے نه وتے دے یعنی قران شریف

داد ډیر وروایا تو نه معلومیږی. چه د خدائے سخه نزدے والے د قران امره په بل هیڅ څیز نه حاصلیږی. امام احمد بن حنبل رح وے چه ما د خدائے په خوب کښ زیارت اوکه. نو ما ترتپوس اوکه. چه خدایه! تا ته د نزدے والی د پار کم څیز سره ذریعه ده؟ نو خدائے راته اووے چه احمده! اخما قران. نو ما ورته اووے چه په پوهه که بے پوهے؟ نو خدائے راته اووے هر رنګ چه وی۔

په دے باره کښ شاه عبدالعزیز صاحب مرحوم فرمائی چه سلوک د خدائے طرف ته تله او د احسان چه کم مرتبه ده. دا په درے طریقو حاصلیږی. اول تصور دے چه دیته تفکر او تدبر وائی. او صوفیان ورته مراقبه وائی. دوم زبانی ذکر دے. دریم د کلام پاک تلاوت دے. په اصل کښ طریقے دوه دی. اول عام ذکر دے. که د جهه وی. او که د زړه وی. او دویم د قران تلاوت دے. د الله د نوم یا د

دہ صفات چہ بار بار ویلے شی۔ نو بندہ د پوہے طاقت ردہ
طرف تہ متوجہ شی۔ او بس بیا د ذات د ہ تہ حاضر غوندے شی
لکہ پہ یو حدیث کبنں راغی۔ چہ بندہ پہ نفلو عبادتو نوما تہ
نزدے کیږی۔ تر دے چہ دے ما ہم خوښ شی۔ او دے مے
دومرہ خوښ شی۔ چہ زہ د دہ غوږ ونہ شم دے بیا پرے اوری
او زہ د دہ سترگے شم لږ دے پہ دے وینی۔ او زہ د دہ لاس
شم لږ دے پہ دہ نیوہ کوی۔ او زہ د دہ خپے شم نزدے پرے تلہ
کوی۔ گویا د نفل عبادت پہ وجہ خدائے د دہ محافظ شی۔ او
بیا دے بندہ تہول اندامونہ د خدائے د احکامو تابع شی۔
او دے ہر وخت د خدائے رضا لټوی۔ نفل یے ځکہ او دے
چہ پہ دے کبنں زیاتے کیدے شی۔

د اقسم لفظونہ د تشبیہ پہ رنگ کبنں د پوہے د پارہ فرمائیلی شی
گنی خدائے ذکر زید وغیرہ نہ پاک دے۔ مطلب صرف دا دے
چہ څوک د خدائے د رضا تلاش کوی نو خدائے د دی طرف
تہ ډیرہ د رحم توجہ کوی۔ او ولے بہ دا سے نہ وی۔ چہ کریم
خو خو د زیات کرم کوی۔ د خدائے کلام چہ سراسر ذکر دے
او د قرآن یو آیت ہم د خدائے د ذکر او خدائے طرف تہ د
تلو نہ خالی نہ دے۔ پہ دے د ہر ذکر زیات د خدائے نزدے
والے حاصلیږی۔ پہ ہر یو کلام کبنں د کلام ویونکی صفات

وی ۔ لکہ د فاسقانو پہ کلام کښ د دی صفات وی او د پرهیزگارانو پہ کلام کښ د پرهیزگاری اثر وی ۔ دغہ وجہ دہ چہ د منطق او فلسفی پہ ډیرو ویلو غرور او تکبر پیدا کیږی ۔ او د احادیثو پہ ویلو عاجزی پیدا کیږی ۔ لنړ د غسی د قرآن پہ ویلو د قرآن دنا لونکی سرہ یقیناً محبت پیدا کیږی ۔ او د هر مصنف د کتاب سرہ چہ څوک محبت کوی ۔ نو د مصنف د دہ سرہ مینہ وی نو د خدای د کلام سرہ چہ څوک محبت کوی ۔ دا وائی او پہ دے ځان پوہ کوی نو د خدای بہ ولے د دے قسم بندہ سرہ محبت نہ وی ۔ لوی خدای د ږخوبږ د ټولو د قرآن شریف سرہ پورہ پورہ تعلق پیدا کی ۔ چہ مهربان خدای پہ دانہ خوشالہ شی ۔ او د دُنیا او د آخرت خوشالی را کی آمین ۔

(۲۴) عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللہ علیہ وسلم اِنَّ لِلّٰهِ اَهْلِيْنَ مِنَ النَّاسِ قَالُوْا مَنْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اَهْلُ الْقُرْاٰنِ هُمْ اَهْلُ اللّٰهِ وَخَاصَّتُهٗ (رواہ النسائی و ابن ماجة)

انس رض د خوږ بنی ؐ نہ دا ارشاد نقل کوی ۔ چہ د خدای د پارہ پہ خلقو کښ بعض خاصو کورونو خلق وی ۔ اصحابو عرض اوکړہ چہ دا کُم خلق دی؟ خوږ بنی ؐ اوے چہ د قرآن شریف عالمان دی د اللہ خواص دی ۔

دقرآن خلق هغه خلق دے - چه هر وخت په کلام پاک کښ مشغول وی - او دده سره خاص محبت لری - نو دی دخدائے خاص خلق دے - او په دی دخدائے خاص رحمتونه وی دی په دے محبت دالله مرکز تیا حاصله کی - او دالله دڅونو خاص شرافت حاصل کی - ددنیا په بادشاهی دربارونو کښ دداخلے دپاره دممبرانو په ډله کښ دشاملیدو دپاره ځومره جانی او مالی قربانی پکاروی - دووټرانو ځومره خوشامندے کوی - ذلتونه برداشت کوی او ویټه لوی کاروائی ولے ځوک چه دالله دربادی جوړیږی او دا درباری کیده دقرآن په زده کړه حاصلیږی - نو دے محنت ته دیر خلق اود دسره کار نه وائی - دے رواج ته لږ او ګوری - د مخلوق باچا سره مینه ده - او دخالق دمینے نه تیخته کوی - الله ته مونږ په خالق مین کړے - او خالق په مونږ -

(۲۵) عَنْ اَبِی هریرة قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صلے اللهُ علیه وسلم مَا اَذِنَ اللهُ لِشَیْءٍ مَا اَذِنَ لِنَبِیٍّ تغنی بِالْقُرْاٰنِ (رواه البخاری ومسلم)

حضرت ابوهریره دخوړ نبی ؐ دا فرمان نقل کوی . چه خدائے هیڅ کس ته داسے توجه نه کوی - ځومره چه هغه نبیؐ آوازته کوی - ځوک چه د خدائے کلام په خوش آوازی وائی

دقران طرف تہ دخدای دیرہ توجہ معلومیدہ شوی وہ۔
او دانبیا، تلاوت دیر دکمال نہ ډک وی۔ ځکہ ددی طرف تہ
دخدای زیاتہ توجہ وی او چہ بیا پہ خوش آوازی وی۔ نو لا
دزیات توجہ قابل شی۔ دغسی دپیغمبرانو نہ پہ سبکتہ خلقو کښی
بہ درجہ پہ درجہ دخدای درحم توجہات ددی طرف تہ
وی (دخدای موبز تہ درحم او مینی توجہ لوی دولت دے
کہ مونصیب شی)

(۲٦) عَنْ فُضَالَةَ بن عبید قال قال رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم اَشَدُّ اُذُنًا اِلٰی قَارِئِ الْقُرْاٰنِ مِنْ صَاحِبِ الْقَیْنَۃِ اِلٰی قَیْنَتِہٖ (رواہ ابن ماجۃ)

حضرت فضالہ بن عبید دخوږ نبی م فرمان نقل کوی چہ خدای دقران لوستونکی طرف تہ دھغہ مالک نہ زیات غوږ کدی۔ څوک چہ دخپلی وینځی سندرے اوری۔

دسندرو طرف تہ غوږ کیخودہ پیدائشی خوی دے۔ خو نیکان ورتہ دنیکی پہ وجہ غوږ نہ کدی۔ خو دخپلی وینځے سندرے اوریدہ شرعاً بد نہ دی۔ ځکہ مالک دیتہ ښہ غوږ کدی خو دقران لوستہ د دسندرو پہ رنګ کښی نہ وی۔ خوږ نبی وائی۔ چہ دعاشقانو د غزلو ھسے قران مہ لولی۔ دا قسم لوستہ دفاسقانو کار دے۔ او بے ددینہ پہ قدرتی خوش

اوازی لوستهٔ د قرآن خایشت برغ کوی ۔ شیخ عبد القادر جیلانیؒ
په "غنیه" کتاب کښی لیکی ۔ چه عبد الله بن مسعودؓ یو کله ار د
کوفې ښار په خوا اُشاته چه د ده د فاسقانو په ټولګی تیریده
اوشوه په دیکښی "زاذان" نوم سړی سارینګی وهله او غزل
یی وے ۔ ابن مسعودؓ چه دا واوریده نو ده اُوے ۔ څه ښکلی
اواز دے ۔ که په دے یے قرآن لوستے! "زاذان" دا خبره واوریده
ده تپوس اوکه خلقو ورته حال اوے ۔ په دے به ده داسے رُعب
پریوت چه د ده خپل ټول مجلس لوښی لرګی مات کړه ۔
او په ابن مسعودؓ پسے روان شه ۔ او دو مره محنت اوکه چه
لوے علامه ته جوړ شه ۔
حضرت حذیفهؓ د خوږ نبیؐ نه داسے نقل کوی ۔ چه قرآن
شریف د عربو په اواز وایئی ۔ د عاشقانو او د یهودیانو
عیسایانو په وزنونو یے مه وایئی ۔ زر به داسے قوم پیداشی
چه د سندروا و د جراګانو په رنګ کښی به قرآن شریف
جوړ جوړ وایي ۔ دا قسم قرآن لوسته به د یته فائده نه ورکوی
دی به په خپله هم په فتنه کښی وی او لوړ خلق چه د یته سبه
وایي ۔ دی به په فتنه کښی پریوځی ۔ خوږ نبیؐ داسے قرآن
لوسته سبه ګڼړی ۔ چه د دینه د خدائے اویره معلومیږی ۔ د خدائے
د طرف نه یو فرښته مقرره ده ۔ چه څوک قرآن لولی ۔ او سمے

اوند لولی نو فرښته د اقرآن سم کی او بره ہے اوسی۔ اللّٰهم لا احصی ثناءً علیك۔

(۲۷) عَنْ عبیدۃ المُلیکیّ قال قال رسول اللّٰهِ صلّے اللّٰه علیه وسلم یَا اَهْلَ الْقُرْاٰنِ لَاتَتَوَسَّدُوا الْقُرْاٰن وَ اتْلُوْهُ حَقَّ تِلَاوَتِہٖ مِنْ اٰنَآءِ اللَّیْلِ وَالنَّهَارِ وَ افْشُوْهُ وَتَغَنَّوْهُ وَتَدَبَّرُوْا مَافِیْهِ لَعَلَّکُمْ تُفْلِحُوْنَ وَلَا تَعْجَلُوْا ثَوَابَهٗ فَاِنَّ لَهٗ ثَوَابًا (رواه البیهقی فے شعب الایمان)

حضرت عبیدۃ ملیکی د خوږ نبی صلے اللّٰه علیه وسلم نه نقل کوی ای د قرآن منونکو په قرآن تکیه مه لکوی۔ او د دہ تلاوت شپه او ورځ داسے کوی لکه چه د دہ حق دے۔ د قرآن خوره وَل کوی۔ او دے په سبه آواز وایی۔ او د دہ په معناگانو کښ فکر کوی۔ چه کته او کړی او د دہ بدله په دنیا کښ مه غواړی۔ ځکه چه په آخرت کښ د دہ لویه بدله دہ۔

په دے حدیث کښ یو څو حکمونه دی۔

(۱) په قرآن تکیه مه لکوی۔ دا بے ادبی دہ۔ د قرآن طرف ته خپے کول، دہ ته شا کول، د دہ د خپو ورلاندے کول حرام دی۔ او د دینه مطلب غفلت هم کیدے شی۔ چه قرآن د برکت د پاره په بالخت کیدی۔ لکه په بعض قبرونو باندے لیدلی شویدی

چه قرآن د برکت د پاره په رحيل کښ پروت وی - دا د قرآن حق تلفی ده - ذده د حق ادا یګی په تلاوت کښ ده -

(۲) او ددهٔ تلاوت او کړی څرنګ چه ددهٔ حق دے - بښهٔ ادب سره ددهٔ په تلاوت کوی - قرآن پخپله وائی - اَلَّذِیۡنَ اٰتَیۡنٰهُمُ الۡکِتٰبَ یَتۡلُوۡنَهٗ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ - چا ته چه موږ قرآن ورکړے دے - هغه قرآن دا سے تلاوت کوی لکه څرنګ چه ددهٔ حق دے - لکه په کم عزت چه د بادشاه فرمان او په کم شوق سره چه د محبوب کلام لوستے شی - د عشق دا قرآن لولی -

(۳) او ددهٔ اشاعت کوی هغه دا سے چه په ویلو، لیکلو په ترغیب ورکولو - هر څرنګ چه کیدے شی - ددهٔ خوره وَل کوی خو بدبختی ده خو د کلام پاک د خوره وَلو حکم کوی - او څمونږ تاریک دِماغی خلق د قرآن لوستو فضول ګنړی - اولادته یے او ګوره چه دی د خدائے او د رسول د محبت او کدے او کدے دعوے هم کوی - شعر

ترسم نه رسی به کعبه اے اعرابی -
کین ره که تو مے روی به ترکستانست

د خو بدبختی ده فرمان دے چه قرآن خور کړی - او موږ د قرآن په بندیز کښی نارا ستیانکو - د تعلیم په زوره کولو قانونونه جوړیږی - چه بچی د قرآن په ځاے پرائمری او ائی او دا د

تعلیم خوره ونکی واپي چه دجمات ملا صاحب د بچو عمر هسے خرابه وی - ځکه موږ بچی ملا صاحب ته نه لیګو - کیدے شی چه هغه خواری نه کوی - خو په تاثو چه دقرآن د اشاعت کم فرض لازم دے - تاثو به دا په پرائمری کښ ادا کړی - چه څنګه دپرائمری اُستاذان اکثر دقرآن په عبارت لوستو قادر نه وی او دهغې په نصاب کښ دقرآن لوستو هم نشته او د نورو مضامینو دپاره یو مدرس که په رسمی طور سره اړ وی - نو دے په امتحان خو یا ممتحن پوهیږی نه یا هغه ته هم نه ورځی ځکه چه دهغه په امتحان کښ دقرآن لوسته نه په مډل کښ شته او نه په هائی کښ - نو ګویا درے تول کوشش نتیجه به دا شی چه که دا ته خدلیږ د بر قرآن ملا صاحب خو نو دهغې نه به هم خلاص شی - نو ګویا تاثو دِدِق مرض علاج په سنکهیا اوکه - تاثو په پرائمری کښ د دفتر منشیان په ستلو کښ څلور پنځه خو جوړ کړه - ولے دقرآن د تعلیم نه محروم کړه -

(۴) په خوش آوازی قرآن وایئ -

(۵) او دده په معنی کښ غور کوی - په احیاء کتاب کښ د تورات نه دخدائے وینا نقل ده چه" اے ځما بنده! ته ځما نه نه شرمیږے چه که تا ته په لار کښ چا د دوست خط درکه

نو ته ورته اودریږي، او خر ته شي، کینی او پر غور سره یې کوري نکه تکی لولي - او غور پر کوي - او څما کتاب تا سخن دی - ماصفا کتاب درلیکلی دی - بار بار می په کښی یوه خبره بیان کړی ده - چه ته پر غور اوکي - او ته اودیته فکر نه کوي - ولې څه درته د دنیا د دوستانو نه ذلیل ښکارم؟ ته چه د دوست خط وایي - نو دبل چا خبري ناوري اودی دخبرو نه منع کوي - او څه درته دقرآن په ذریعه خبري کوم نو ته ورته اړو توجه نه کوي - نو څه درته دخپلو دوستانو نه کم ښکارم؟

(۶) دقرآن بدله په دنیا کښی مه غواره - دقرآن په تلاوت څه دنیوی بدل مه غواره - ځکه چه ده دآخرت عوض ډیر لوي دی - که دده په بدل کښی دنیا وا غښتی شي نو دا به داسی شي - لکه در و پو په بدل کښی کوڅکی شوی - خوږ بنی وایي چه هرکله څما امت روپۍ اشرفۍ لوی څیز او گنړی - نو داسلام رعب به لاړ شي - او چه امر بالمعروف او نهی عن المنکر پریږدی - نو دوحی دقرآن دبرکت نه به محروم شي -

(۲۸) عن واثلة رفعه

دواثلة نه پوره سند سره

أُعْطِيتُ مَكَانَ التَّوْرَاةِ

دخوږ بنی ؐ نه نقل دي چه

السَّبْعَ - وَأُعْطِيتُ مَكَانَ

خوږ بنی ؐ وي چه ما ته دتوراة

الزَّبُورِ الْمِئِينَ وَاُعْطِيْتُ مَكَانَ الْاِنْجِيْلِ الْمَثَانِيْ وَفُضِّلْتُ بِالْمُفَصَّلِ - لاحمد والکبیر کذا فی جمع الفوائد -

په بدل کښ اووه اوګده سورتونه راکړے شو- او د زبور په بدل کښ سل او د انجیل په بدل کښ مثانی او مفصل خماسره خاص دی

دقرآن شریف اول اووه سورتونه "طوال" دی او ددیئه روستو یولس سورتونه "مئین" دی- او ددینه پس شل سورتونه "مثانی" دی- او ددینه روستو سورتونه تر اخره پورے "مفصّل" دی. څه قدرے په دیکښ اختلاف شته خو غرض دحدیث دا قدرے دے- چه دتیرو اسمانی کتابونو مثلونه په قرآن شریف کښ شته او دقرآن شریف مفصل سورتونه خاص دقرآن شریف خصوصیت دے- چه دا اړو په تیرو کتابونو کښ موندے نه شی-

(۲۹) عَنْ اَبِی سعید الخدری قَالَ جلستُ فِیْ عِصَابَةٍ من ضعفاء المهاجرین وان بعضهم یَسْتَتِرُ بِبَعْضٍ مِّنَ الْعُرْیِ وَقَارِیٌ یَقْرَأُ عَلَیْنَا اِذْ جَآءَ

حضرت ابوسعیدؓ وائی چه څه دعاجزانو مهاجرینو سره ناست وم- او ددی سخه دځان پټولو جامه نه وه- دی په یو بل ځان پټ کړے وو- یو تن پکښ قرآن وے

رسول الله صلى الله عليه و
سلم فقام علينا فلما قام
رسول الله صلى الله عليه وسلم
سكتَ القارئُ فسلَّمَ ثمَّ
قالَ ما كنتم تصنعونَ
قُلنا نستمعُ إلى كتابِ الله
تعالى فقال الحمد لله الذي
جعلَ من أُمّتي من أُمرتُ
أنْ أصبرَ نفسي معهم قالَ
فجلسَ وسطنا ليعدلَ بنفسِهِ
فينا ثم قال بيده هكذا
فتحلّقوا وبرزتْ وجوهُهم
له فقال ابشروا يا معشر
صعاليك المهاجرين بالنور
التام يوم القيمة تدخلون
الجنة قبل اغنياء الناس
بنصف يوم وذلك خمسمائة
سنة (رواه ابو
داود)

په دې کښې خوږ نبي علیه السلام راغې
او کښېنوېږ. سخه او ورېده قاري
په دې وجه چپ شه. نو خوږ نبي ع
سلام اوکه. او بیا یې تپوس اوکه
چه تاسو څه کول؟ مونږ ورته
او وې چه مونږ د قاري نه قرآن
اورېده خوږ نبي ع او وې چه ټول تعریفونه
هغې خدای لره دي. چه هغه ځما
په امت کښې داسې خلق پېدا کړه.
چه خدای ماته د دې سره د کېناستو
حکم اوکه. بیا خوږ نبي ع کښېنوېږ په
مینځ کښې کېناسته چه ټول وېشي او د چا نه
نزدې اوګرځي وي. بیا یې ټولو ته د حلقې
جوړولو حکم اوکه. ټولو خوږ نبي ع ته
مخ که. او کېناسته نو خوږ نبي ع او وې چه
اې عاجزانو مهاجرینو تاسو ته زېرې
وي د قیامت د ورځې د کامل رڼا او د
خبر چه تاسو به د مالدارانو نه نیمه ورځ
مخکښې جنت ته ځئ. او دا نیمه روځ

## د پنځه سوه کاله برابر دہ ؛

ددی دستر اند اموندخو په پرده وو۔ ولے نور وجود یے په یوبل پټ وو۔ دی دومره مشغول وو۔ چه اول د خوږ بنیؐ په راتلو پوهه نه شو۔ خو چه هغی یے په سرا وورید ه۔ او قاری د ادب په وجه چپ شه۔ نو خوږ بنیؐ د ډیرے خوشالی نه چه دهغی د قرآن لوستد یے اوریدلی وو۔ تپوس کوی چه تا خوخه کول ؟ د قیامت یوه روځ د دنیا د روځو د زر کاله برابره ده۔ ق اِنَّ یَوْمًا عِنْدَ رَبِّكَ كَاَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّوْنَ ۝ او دا هم د مؤمنانو د پاره کنی د کافرو د پاره خو راځی فِیْ یَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗ خَمْسِیْنَ اَلْفَ سَنَةٍ ۔ دا سے روځ چه د پنځوسو زرو کالو برابروی۔ او د خاصو مؤمنانو د پاره خو دا روځ د دوو رکعتو برابر وی۔ دا فرق د ارام، ډیر ارام او تکلیف او ډیر تکلیف په وجه دے۔ تا خو د قرآن نور فضیلت پر یږدی دیته او گوری۔ چه خوږ بنیؐ تر حکم کیږی۔ چه ورشه د قرآن لوستونکو سره کینه۔ په بعض روایا تو کښی راځی چه د قرآن اوریده د لوستو نه غوره دی۔ ځکه چه لوسته یے نفل دی او اوریده یے فرض دی۔ او فرض د نفلو نه خو زیات وی نادار صبرناک چه خپل حال چا ته نه وائی دے د مالدار شکرگذار او د مال د حق اداکونکی نه علماء ښه منی۔ او دلیل دا دے :۔

(۳۰) عن ابی هریرة قَالَ قَالَ رسول الله صلّی الله علیه وسلم مَنِ اسْتَمَعَ اِلٰی اٰیَةٍ مِّنْ کِتَابِ اللهِ کُتِبَتْ لَهٗ حَسَنَةٌ مُضَاعَفَةٌ وَمَنْ تَلَاهَا کَانَتْ لَهٗ نُوْرًا یَوْمَ الْقِیٰمَةِ (رواه احمد عن عبادة)

حضرت ابی هریره دخوږ بنی ۴ نه نقل کوی. چه کم بنده د قرآن شریف آیت واوری نو دده دپاره دوه برغے نیکئ دی. او چه څوک یے اولولی. نو دده دپاره به دا د قیامت په روځ رڼرا شی.

دسند په لحاظ سره په دے حدیث کښې کلام شته. خو د حدیث مضمون په نورو روایاتو سره صحیح دے. دکلام پاک اوریدو هم لوئے ثواب لری. تر دے چه بعض خلق اوریده دلوستونه غوره وائی.

ابن مسعودؓ وائی چه یوځل راته خوږ بنی ۴ اُوے اودی په ممبر دپاسه ناست وو. چه ماته قرآن واوروه. ما ورته عرض اوکه چه په تاسو خو لځپله نازل شوے دے. نو حُم به یے درته څه واوروم. خوږ بنی ۴ راته اوے. زړه مے غواړی چه ستا نه یے واورم. ابن مسعودؓ وائی چه ما ورته واوروه او دخوږ بنی ۴ دستر کونه اُخکے بهیدے. سبحان الله څه بنه مجلس وو!

یو کل ارسالم د حذیفهؓ غلام قرآن شریف وے۔ نو خوږ نبیؐ ورته ډیر ساعت اولاړ وو۔ اوریدلو یے۔ د ابو موسیٰ اشعریؓ نه خوږ نبیؐ قرآن واوریده نو د ده تعریف اوکه۔

(۳۱) عَن عقبة بن عامرؓ قَال قال رسول الله صلّی الله علیه وسلم اَلجَاهِرُ بالقرآن کالجاهر بالصدقة والمُسِرُّ بالقرآن کالمُسِرِّ بالصدقة (رواه الترمذی)

عقبه د عامرؓ ځوی د خوږ نبیؐ علیه الصلوٰة والسلام نه داسے نقل کوی۔ چه خوږ نبیؐ وے چه په زوره قرآن ویونکے د ښکاره خیرات کونکی هسے دے۔ او په پټه ویونکے یے د پټ خیرات کونکی هسے دے

د خیر زکوٰة د ورکړې مختلف حالات کیدے شی۔ کله چا ته ستا په ښکاره ورکړې شوق پیدا کیدے شی۔ یا په دے کښې بل څه مصلحت وی۔ نو بیا ښکاره ورکړه ښه دی۔ او که د ریاء شک یا د فقیر په دے ذلت راتہ۔ نو بیا پټ ورکړه ښه دی۔ د غسے د دے حالت په برابر به د قرآن په ښکاره او پټ لوستو قیاس کیږی۔

بیهقی په کتاب الشعب کښې د عائشې بی بیؓ (خو په ضعف سره) نقل کوی۔ چه په پټه عمل د ښکاره نه اویا درجے زیات ثواب لری۔

د حضرت جابرؓ نه روایت دے چه خوږ نبیؐ فرمایلی دی

چه قرآن د ومره په زوره مه وائې. چه دیوا واز د بل سړي که ورشي (د قرآن په کنزه په ختم کښ داسې کیږي، حافظان او ختم کونکي دِ خان بچ کي.

حضرت عمربن عبدالعزیز د خور بنې په جمات کښ یو سړې اولیده چه په زوره یې قرآن وے نو دي دے منع که. هغه دلیل اوغوخته دي ورته اُوے. که دالله د پاره یې وایې نو رو روایه او که د خلقو د پاره یې وایې. نو بے فائدے یې وایې. د خور بنې په زوره دوئیا روایات هم شته.

(۳۲) عَنْ جابرٍ عن النبی صلّی الله علیه وسلم القرآن شَافِعٌ مُّشَفَّعٌ وَ مَا حِلٌ مُصَدَّقٌ من جعله امامه قادہ الی الجنة وَمَن جعله خلف ظهره ساقطه الی النَّارِ (رواه ابن حبان و الحاکم)

حضرت جابرؓ د خور بنې نه داسے نقل کوی. چه قرآن شریف داسے سفارشی دے چه د هغه شفاعت قبول دے او دے داسے جهگړه کوی. چه د دہ جهگړه منلے شوے ده څوک چه قرآن شریف د خان مخکښ کی نو دے به یې جنت ته اورسوي او څوک چه دے د روستو کی نو دے به یې دوزخ ته اوغورزوی

قرآن به د قرآن خوان او قرآن دان او په ده د عمل کونکی

شفاعت کوی. او خدای به دده شفاعت خامخا قبله وی
او که داد قرآن تعلق لرونکے گناهکار وی. نو د اقران به دده
دپاره جهگړه کوی. او دده جهگړه به اورید ے شی - دده په
جهگړه به لوی لوی مرتبے هم ورکیدے شی او چا چه دده
سره تعلق اُنه لاره - او دده دویلو - په ده د عمل کولو حق
ادا نه که. نو دے به د دے قسم خلقو نه مطالبه کوی - نو
تا بعداران به جنت ته رَسوی. او چه څوک تِه خلاف کوی
نو لازمی خبره ده - چه دوزخ ته به غورزیږی. څوک چه هر
کتاب، اخبار او د بندیانو په جوړو رسالو او کتابونو
بانده رقمونه او وختونه نکوی او د قرآن د زده کړے
او خیال نه لری - دی هم په دے کښ داخل دی ځان
ته اُکوری او ځان بچ کړی)

خوږ بنی ؑ ته چه د سزا کانو په خوب کښ خوُنه شوے ده.
ده ته یو بنده اُخوے شه - چه د ده سَر په کتهو ویشتے شه
او دا به چینغږ ئے شه - د دے په جواب کښ ورته ملائکو
اُوے چه دا هغه بنده دے - چه قرآن لوستے ورتله خو ده
نه داد شپے وے - او نه یے په د روځے عمل کاوو - او دا
معامله به ورسره په برزخ کښ تر قیامته روانه وی -
( استغفرالله )

(۳۳) عن عبد الله بن عمر قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم الصِّيَامُ وَالْقُرْاٰنُ يَشْفَعَانِ لِلْعَبْدِ يَقُولُ الصِّيَامُ رَبِّ اِنِّيْ مَنَعْتُهُ الطَّعَامَ وَ الشَّرَابَ فِي النَّهَارِ فَشَفِّعْنِيْ فِيْهِ وَيَقُوْلُ الْقُرْاٰنُ رَبِّ مَنَعْتُهُ النَّوْمَ بِاللَّيْلِ فَشَفِّعْنِيْ فِيْهِ فَيُشَفَّعَانِ (رواه احمد)

عبد الله بن عمر د خوږ نبي علیه السلام نه دا سے نقل کوی. چه روجه او قرآن دواړه به د بنده د پاره شفاعت کوی. روجه به وائي. چه خدایه ما دے د روځے د خوراک سکاک نه منع کړے وو. د ده د پاره څما شفاعت قبول کړه. او قرآن به وائي چه ما دے د شپے د خوب نه منع کړے وو. څما شفاعت قبول کړه. نو د دواړو شفاعت به قبول شي.

"الشَّرَاب" نفساني خواهشات کړیدی. په روجه کښی د ټولو نفساني خواهشونو نه جدا اوسیدل پکار وی. اګرکه هغه جائز وی. لکه د ښځے په وجه وزرغارېدل او په بعض روایاتو کښی راغلی چه قرآن به د یو ځوان په شکل کښی راشي. او د قرآن عاشق ته به اُوائي چه هغه څوک دی چه تره د خوب نه او بیښکل وے. او د روځے تږے ساتلے

د دینه معلومه شوه چه قرآن د شپې په نوافلو کښې لوستو
بکار دی - په قرآن کښې پخپله راغلي چه - وَمِنَ الَّيْلِ فَاسْجُدْ
لَهٗ وَسَبِّحْهُ لَيْلًا طَوِيْلًاo وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ
يَتْلُوْنَ اٰيٰتِ اللّٰهِ اٰنَآءَ الَّيْلِ وَهُمْ يَسْجُدُوْنَo وَالَّذِيْنَ
يَبِيْتُوْنَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَّقِيَامًاo دغه وجه وه چه خو د
نبي ؐ او اصحاب به ټوله ټوله شپه د قرآن په تلاوت کښې
تیره کړه - حضرت عثمان رض او حضرت عبد الله بن زبیرؓ
به په یو رکعت کښې ټول قرآن شریف ختم کړ - سعید بن
جبیر رض په کعبه کښې دننه په دوه رکعته کښې قرآن شریف
ختم کړے وُو -

ثابت بناني رح به په شپه او ورځ کښې یو کذاره قرآن شریف
ختم کاوُو - ابو شیخ هنائی وائي - چه ما به یوه شپه کښې
دوه کذاره قرآن شریف ختم کړ - او دریم کذار کښې به لس
پارے اُویلے او که ما غوښتے نو دارم هم ختم کولے شو - دا
مخصوص حالات دی - د هغې بعض خلقو چه په هغې کښې
د قرآن شریف مکمل عشق وُو - او ځان ځان ته به ارم
وو - دا معمول د امام شافعيؒ په رمضان او غیر رمضان کښې
پاتے شوے دے - تر دے چه ابن الکاتبؒ اته کذاره په
شپه ورځ کښې قرآن ختم کړے دے - دوه او درے کذاره

خو دپیرونیکانو نه روایت شته۔ او دا په بنه پر خوشالی بے ستومانتیا، او په چراچرا ویلے شه۔ په تاریخ کښی راغی چه امام اعظم ابوحنیفه رح به په رمضان شریف کښی یوشپیته کړاره قرآن ختمه وو۔ یوکړا د شپے او یوکړا د ورځے او یوکړا په تراویح کښی په ټول رمضان کښی۔ خو خو د نبی م فرمایلی دی۔ چه د درے ورځونه چه په کم کښی ختم اوشی نو په دے کښی فکر نه شی کیدے۔

د غه وجه ده چه ابن حزم وغیره علماء د درے ورځونه په کم کښی ختم کول حرام وائی۔ ولے روایات کم وزیات دواړه راغلی دی۔ ځکه جمهور د حد قایل نه دی۔ خو چه په هر څو مره کښی په آسانه سره او یلے شی۔ د بعض علماء دا مذهب دے۔ چه د څلویښتو ورځونه د زیات په ختم نه لری۔ گویا درے پاوه روزانه ویل ضروری دی که یوه ورځ تلاوت اونه شه۔ نو بله ورځ دِ د دے قضا اوکی۔

صاحب د مجمع یو حدیث نقل کړے دے۔ چه مَنْ قَرَأَ الْقُرْاٰنَ فِیْ اَرْبَعِیْنَ لَیْلَةً فَقَدْ عُذِّبَ۔ چا چه قرآن په څلویښت شپے کښی ختم که نو ده ډیره اِسارتیا اوکړه۔ بعض علماء په هره میاشت کښی ختم وائی۔ غوره خبره داده۔ چه په هفته کښی ختم کیږی۔ ځکه چه د عام اصحابو

داعادت وو۔ د جمعه په روځ دِ شروع کوی. یو منزل دِ روزانه وائی ۔ د زیارت پنجشنبے په روځ دِ ختم کوی ۔

امام صاحبؒ وائی چه په کال کښې دوه ګنا ره ختم خو دده حق دے ۔

په یو حدیث کښې رائی چه څوک د روځے یا د شپے په اول کښې ختم اوکی نو ټوله روځ او شپه ملائکے دده د پاره د رحمت دعا کانے کوی ۔ ځکه علماء وائی ۔ چه په ګرمئ کښې دِ د روځے په اول کښې او په جمی کښې دِ د شپے په اول کښې ختم کوی چه ملائکے ورله اوګده روځ اوګده شپه سوالونه کوی ۔

(۳۴) عَنْ سعید بن سُلَیْمٍ مرسلاً قال قالَ رسولُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْہِ وَسلم مَامِنْ شَفِیْعٍ اَفْضَلَ مَنْزِلَةً عِنْدَ اللهِ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ مِنَ الْقُرْاٰنِ لَا نَبِیٌّ وَ لَا مَلَکٌ وَ لَا غَیْرُہٗ (قال العراقی رواه عبد الملك بن حبیب

سعید د سلیم ځوے د خوږ نبیؐ نه دا فرمان نقل کوی چه د قیامت په روځ به د خدائے سره هیڅ څوك د قرآن امره شفاعت کونکے نه وی ۔ نه څوك پیغمبر او نه ملائکه وغیره

د قرآن شریف بے مثله سفارشی والے د نورو روایاتو نه

هم معلومیږی۔ الله دِ دے خُننګ د تولو سفارشی کی۔ الله دِ
دے خموږ مخالف مدعی نه کی۔ په "لآلی مصنوعه" کښی د بزاد
په روایت نقل دے چه هر کله یو بنده مری نو ورته د کور
خلق د شخه ولو کفن کولو غم کوی۔ او ورته سرته یو پیر
خائشته شکل اولاړ وی۔ چه دے په کفن شی نو دا شکل د
دکفن او سینے په مینځ کښی ور داخل شی۔ چه خلق دفنولو
نه را ستنیږته شی۔ او منکر نکیر راشی۔ نو دی دے خائشته
بنده ته اُوائي چه ته ارخ ته شه۔ موږ د دے مری سره
څه سوال جواب کو۔ نو دے ورته وائي دے خو څما دوست
او مرګرے دے څه دے کله یوائے پریږدم۔ تاسو که څه
سوال جواب کوی نو اوکړی۔ څه خو به دے جنت ته رسوم
هله به ته چه اکیږم بیا د امرګرے دے مری ته وائي چه ګوره
څه هغه قرآن یم چه تا به کله په زوره ویلم او کله رو رو۔
ته فکر مه کوه۔ منکر نکیر د سوال جواب نه روستو په تا هیڅ
غم نشته۔ دے چه د سوال جواب نه اوزګار شی۔ نو د ا
ځوان ورته د پاره دبر خائشته او اُوچت وطن نه دریځو
ربخچونړے چه د مشکونه ډکه وی انتظام اکی۔ خدائے دِ
دا خموږ د تولو نصیب کی۔ دالوی حدیث دے۔

(۳۵) عَنْ عبدِ الله بن | حضرت عبد الله بن

عمر انؓ رسول الله صلی الله علیه وسلم قَالَ مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ فَقَدِ اسْتَدْرَجَ النُّبُوَّةَ بَيْنَ جَنْبَيْهِ غَيْرَ أَنَّهُ لَا يُوحَىٰ إِلَيْهِ لَا يَنْبَغِي لِصَاحِبِ الْقُرْآنِ أَنْ يَجِدَ مَعَ مَنْ وَجَدَ وَلَا يَجْهَلَ مَعَ مَنْ جَهِلَ وَفِي جَوْفِهِ كَلَامُ اللهِ (رواه الحاكم)

عمرو د خوږ نبیؐ نه دا فرمان نقل کوی. چه چا قرآن اولوسته نو ده د نبوة علوم په خپلو چجو داخل کړه خو دومره ده چه ده ته وحی نه کیږی. د قرآن پوهه ته نه دی ښکار چه د قارجن سره قار اُکی. یا د جاهلانو سره نادانی اوکی. ځکه چه د ده په کیده کښ قرآن دے.

د خوږ نبیؐ نه روستو وحی بنده شویده خو د نبوة علوم په قرآن کښ موجود دی. نو د قرآن په لوستو د بندهٔ سینے ته د نبوة علوم ورځی. او چه بنده د نبوة په علومُ عالم شی نو بیا ضروری شی. چه د دے مناسب بنه اخلاق پیدا کی او د ناکارو اخلاقو نه ځان بچ کی.

فضیل د عیاضؒ ځوبے وایی چه د قرآن حافظ د اسلامُ جهنډه پورته کونکے دے. ده ته نه دی. ښکار چه د لوبغارو سره لوبے کوی. یا د غافلو خلقو سره کینی یا بے کاره وخت تیروی

(۳۶) عَنِ ابْنِ عُمَرَ
قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
ثَلٰثٌ لَا يَهُوْلُهُمُ الْفَزَعُ
الْاَكْبَرُ وَلَا يَنَالُهُمُ الْحِسَابُ
هُمْ عَلٰى كَثِيْبٍ مِّنْ
مِسْكٍ حَتّٰى يُفْرَغَ مِنْ
حِسَابِ الْخَلَائِقِ. رَجُلٌ
قَرَأَ الْقُرْاٰنَ ابْتِغَاءَ
وَجْهِ اللّٰهِ وَاَمَّ بِهٖ
قَوْمًا وَهُمْ بِهٖ رَاضُوْنَ
وَدَاعٍ يَدْعُوْ اِلَى الصَّلٰوةِ
ابْتِغَاءَ وَجْهِ اللّٰهِ وَرَجُلٌ
اَحْسَنَ فِيْمَا بَيْنَهٗ وَ
وَبَيْنَ مَوَالِيْهِ (رواه
الطبرانى فى المعاجم)

ابن عمر رض د خور د نبی علیه السلام
دا فرمان نقل کوی. درے تنه
دا سے دی. چه پر دی به د قیامت
هیڅ ویره نه وی. او نه به د دی
سره حساب وکتاب کیږی.
ترڅو چه خلق د حساب وکتاب
نه اوزگار یږی. تو دی به
د مشکو په غونډو باندے ناست
وی. خوشالی به کوی. یو
هغه بنده چه د الله د خدائے
د رضا د پاره قران اُوے او
امام شی. او قوم تر رضا وی
دویم هغه چه خلق مانځه
ته راغواړی صرف د الله د رضا د پاره
دریم هغه چه د خپل مالک او
نوکران سره ښه سلوک کوی.

د قیامت د ویرے، سختو او تکلیفونو نه به د هیڅ مسلمان زړه
خالی نه وی. او نه به تر بے خبره وی. د دینه که یو بنده په یو
کار خلاصیږی نو دا د لکهونو نعمتونو نه لوی نعمت دے.

اودکوروزونوخوشالونه لویه خوشالی ده. خوک چه داکتمرهیخ کنړی اودا وخت ضائع کول کنړی. نو ده دپاره لوے نقصان او تاوان دے. داراوی وائی چه که ما دا حدیث یو، د وه غرض دا دے. چه که ما او ته گذاره نه وے اوریدلے نوما به دا نه وو نقل کړے.

(۳۷) عَنْ اَبِیْ ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ یَا اَبَا ذَرٍّ لَاَنْ تَغْدُوَ فَتَعَلَّمَ اٰیَۃً مِّنْ کِتَابٍ خَیْرٌ لَّکَ مِنْ اَنْ تُصَلِّیَ مِائَۃَ رَکْعَۃٍ وَ لَاَنْ تَغْدُوَ فَتَعَلَّمَ بَابًا مِّنَ الْعِلْمِ عُمِلَ بِہٖ اَوْلَمْ یُعْمَلْ بِہٖ خَیْرٌ مِّنْ اَنْ تُصَلِّیَ اَلْفَ رَکْعَۃٍ (رواہ ابن ماجۃ)

ابی ذر دخوږ نبی نه نقل کوی چه خوږ نبی ما ته اوے اے ابوذره! چه که ته یو سحر لاړ شے او دقران یو ایت زده کړے نو دا دسل رکعتونو نه غوره خبره ده او که دعلم یو باب دِ زده که دا دعمل وی او که نه وی نو دا دزرو رکعتونو نفلونو نه ښه دے

—

دا د روایاتو نه ثابته خبره ده. چه دعلم زده کړه - دَ عباداتو نه غوره ده. خوږ نبی ؐ وائی. چه دعالم په عابد زیاتوالے داسے دے. لکه چه خدے په تا خوکښ په ادنیٰ امتی

لوی یم۔ یو ځاے فرمائی چه په شیطان باندے یو عالم د
زرو عبادت کونکو نه زیات سخت دے۔

(۳۸) عن ابی هریرة رض
قال قال رسول الله صلی
الله علیه وسلم من قرأ
عشر آیات فی لیلة
لم یکتب من الغافلین
(رواه الحاکم وقال صحیح
علی شرط مسلم)

حضرت ابو هریره د خوبد
نبی صلی الله علیه وسلم نه
دا نقل کوی۔ چه څوک
د لسو ایاتونو تلاوت د
شپے کوی۔ نو دے به په
دے شپه د غافلانو نه
نه شمیریږی۔

په لسو ایتونو څومره وخت لګی۔ او په دے بنده د ټولے
شپے د غفلت نه خلاص شه څومره لوی۔ فضیلت دے

(۳۹) عن ابی هریرة رض
قال قال رسول الله صلی
الله علیه وسلم من حافظ
علی هؤلاء الصلوة المکتوبات
لم یکتب من الغافلین
ومن قرأ فی لیلة مائة
آیة کتب من القانتین (رواه
ابن خزیمة فی صحیحه)

ابو هریره رض وائی چه خوبد
نبی ؐ فرمائیلی دی۔ چه څوک
د دے پنځه مونځونو حفاظت
کوی۔ نو دے به د غافلینو
نه نه وی۔ او چه سل
ایتونه په شپه کښ لولی
نو دے به د قانتینو نه
وی۔

حسن بصریؒ وائی چہ څوک سل اُیتونہ دشپې وائی۔ نو قرآن به ددهٔ برخلاف دعوے نه کوی ۔ اوچه دوه سوه وائی ۔ نو ددهٔ به ذقولے شپې دعبادت ثواب کیږی ۔ اوچه دپنځه سوه ترزروپورے وائي ۔ نو ددهٔ دپاره یو قنطار دے ۔ اصحابؓ عرض اوکړچه داقنطار څه ته وائی ۔ نو دی اُفرمایل ۔ چه دولس زره (۱۲۰۰۰) (روپي یا اشرفی)

(۴۰) عن ابن عباسؓ قَالَ نَزَلَ جِبْرَئِیْلُ عَلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَهٗ اَنَّهٗ سَتَکُوْنُ فِتَنٌ قَالَ فَمَا الْمَخْرَجُ مِنْهَا یَا جِبْرَئِیْلُ قَالَ کِتَابُ اللّٰهِ (رواه رزین)

ابن عباسؓ وائي چه جبرئیلؑ په خوږ نبیؐ راغی ۔ نو دے یے خبر کړ چه زر دهٔ چه فتنے به راشی ۔ خوږ نبیؐ ته عرض اوشه ۔ چه د دینه به څرنګ بچ کیده اوشی ۔؟ دهٔ اُوے چه د خدائے په کتاب ۔

په قرآن شریف عمل او ددهٔ تلاوت دفتنونه دَ خلاصی اسباب دی ۔ تاثو په تیر حدیث ۲۲ کښ لوستے دی چه په کم کور کښ قرآن لوستے شی ۔ نو د غلته رحمت او سکینه نازلیږی ۔ او شیطانان د دے کور نه اوځی ۔ دَ فتنونه مطلب د دجال راتلل ، دتاتار فتنه هم لویه فتنه وه ۔

دحضرت علی رض نه روایت دے - چه حضرت یحیٰی ؑ بنی
اسرائیلو ته ویلی وو - چه تاسو ته خدائے دآسمانی کتاب
لوستو حکم کوی - دالوسته داسے دی لکه بنده چه په قلا
کښ وی - که دشمن په ده حمله کوی - نو دالله کلام دده
حفاظت کوی - او دشمن په نه شی راتلے -
اے الله مونږ دقرآن کے، او قرآن خمونږ کے - مونږ د
قرآن په قلا کښ پوره پوره ورداخل کے - او مونږ د ده
په ذریعه دهر قسم فتنونه بچ کے - آمین +

# خاتمه

په دے کښ دخلو یښتو احادیثو نه علاوه درے مقام
مناسب روایات دی -

(۱) عن عبد الملك بن عُمَیر قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فِیْ فَاتِحَةِ الْکِتَابِ شِفَآءٌ مِّنْ کُلِّ دَآءٍ (رواه الدارمی والبیهقی فی شعب الایمان)

حضرت عبد الملک بن عمیر دخوږ نبی صلے الله علیه وسلم نه فرمان نقل کوی - چه په الحمد لله کښ دهرے ناجوړتیا نه روغوالے دے -

په دے کښ دداسے سورتونو فضائل دی چه په ویلو
کښ آسان دی - او فضائل ډیر دی - او یو دوه خاص

کارونه دی۔ چه په دے د قران لستونکی خبریدله ضروری دی
دسورة فاتحے په باره کښ ډیر روایات دی۔ په یو حدیث
کښ راځی۔ چه یو صحابی مونځ کاوو۔ نو خوږ نبی ؐ ورته
آواز اوکه ده د مونځ په وجه جواب ورنه که۔ چه او ز کار شه
نو حاضر شه۔ خوږ نبی ؐ ورته اوے چه مخکښ ولے نه راتلے؟
ده ورته اُوے چه ما مونځ کاوو۔ خوږ نبی ؐ ورته اوے چه تا
دا آیت نه وو لو ستے؟ یَاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا اسْتَجِیْبُوْا لِلّٰهِ
وَلِلرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاکُمْ۔ اے ایماندارو تاسو خوږ نبی ؐ ته هر
وخت د تلنے جواب ورکوی۔ بیا یے ورته اُوے چه څه به تا ته
په قران شریف کښ د ټولو نه غوره سورة اُخیم۔ چه هغه
دالحمد اوه آیتونه دی۔ دیته "سبع مثانی" او "قران عظیم"
وایی۔ دبعض صوفیانو نه دا خبره نقل ده چه هر څه چه
په تیرو کتابونو کښ وو۔ هغه په قران شریف کښ شته
او هر څه چه په قران کښ دی هغه په سورة فاتحه کښ دی
او هر څه چه په فاتحه کښ دی۔ هغه په بسم الله کښ دی۔
او هر څه چه په بسم الله کښ دی هغه د دے په "ب" کښ
دی۔ او د دے وجه دا بیانوی۔ چه "ب" د وصل د پاره
ده۔ او مقصود د ټولو څیزونو د بنده د خدا سره یو
ځائے کیدل دی او بعض وایی چه هر څه چه په "ب" کښ دی

هغه د "ب" نقطه کښ دی. ځکه چه نقطه تقسیم نه قبلوی -
او دیته وحدانیت دخدای یو والے وایی - دبعض ذبرګانو
نه داسے نقل دے. چه په اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ "کښ
ټول دیني او دنیوی مقاصد دی. په بل روایت کښ دی چه
خوږ نبیؑ په ذات دخدای قسم خوری. چه د فاتحې په شان
سورة نه په توراة کښ شته نه په انجیل کښ او نه په زبور
کښ او نه په باقی قران کښ. مشا نخو لیکلی دی. چه که په
پوره ایمان او یقین سره سورة فاتحه اولوستے شی. نو دا دهر
مرض علاج دے. هر دیني دنیوی کار ظاهری او باطنی ناجوړتیا
چه دا اُولیکے او یایے او ستے نو مرضونه ته په شفا کیږی.
دصحاح په کتابونو کښ راغلی دی. چه اصحابو دمار
لړم چیچلی دپاره او دمیرګو او ولیونو دپاره په الحمد باندے
دَم اچولے دے. او خوږ نبیؑ دیته جائز ویلی دی. په یو
روایت کښ راځی چه په سائب دیزید په ځوی حضور په
دے سورة دم اچولے دے. او خپلے لاړے یے د درد په ځائے
اولګولے.
او په یو روایت کښ راځی چه که د اوده کیدو په وخت کښ
چا الحمد او قل هو الله په ځان دم کړه. نو مرګ نه سوا
به دهر تکلیف نه بچ شی.

پہ یو روایت کښ راغي چه دفاتحے ثواب دټول قرآن په قدر
کښ د دوو ثواب لري (۲/۳) په یو روایت کښ خوړ نبي ص وائي
چه دعرش دېن خزانے نه ما ته څلور څیز ونه راکړي شویدي
چه بل چا ته نه دي ورکړي شوي - سورة فاتحه - آیت الکرسي
او د سورة بقره آخري آیتونه او سورة کوثر-
د حسن بصري رح نه روایت دے - چه چا الحمد لله اوے
نو ده گویا تورات ، انجیل، زبور، او قرآن اوے-
په یو روایت کښ راغي - چه ابلیس څلور کرته په جړا انکولا
په سر خاورے اچولي دي - اول دلعنت کیدو په روځ - بل
د آسمان نه ځمکے ته په راکُزیدو - بل چه خوږ نبي ص ته نبوة
ورکړے شه - بل چه سورة فاتحه نازل شه - د شعبي رح سخه یو
سړے راغے او ده د گُردے درد وو - شعبي رح ورته اوے چه
په الحمد یے دم که - دیته اساس القرآن وائي - د مشائخ
په مجرب عملونو کښ دي چه سورة فاتحه اسم اعظم دے
د هر مطلب د پاره دِ دا وائي - او د دے دوه طریقے دي - اول
دا چه د سحر د سنتو او فرضو په مینځ کښ بسم الله الرحمن
الرحیم الحمد لله - د رحیم میم د الحمد د لام سره
یو ځاے یو څلویښت کرته څلویښت روځے - هر جائز
مطلب به یے خدا اے سر کی - انشاء الله تعالی - او که د چا دو

یا بل مرض نا جوړه وی۔ نو په دے دِ ورله او به دم کی او هغه دے دا او سکی۔

دویم د میاشتے په اول اتوار د سحر د سنت او فرضو په مینځ کښں بے د میم دالحمد سره د یو ځائے کو لو نه دِ اووه یا گنډاره دا اووائی او بیا دِ هره روځ لس لس کمه وی۔ تر دے چه هفته ختمه شی۔ که په اوله میاشت کښں خدائے د ده کار او که۔ نو بیا ده کنی په دویمه، دریمه میاشت دِ بیا داسے اوکی۔ د چینی په لوخی کښں په گلاب مشکو زعفران فاتحه لیکل او زړو مریضانو ته دے لیکلے شوے او به سکول تر ځلو یښتو وخو پورے د زړو مرضونو مجرب علاج دے وسر، دغا خولو، دگیډے د درد، په اووه گنډاره لوستو اودم کولو فائده کیږی۔ دا ټول مضمون د مظاهر الحق نه نقل شه

په مسلم کښں د ابن عباسؓ نه یو روایت نقل دے چه خوږ نبیؐ اوے چه نن د آسمان یوه دروازه پرانستے شوه چه مخکښں چرے نه وه پرانستے شوے۔ بیا د دینه یو فرښته راکوزه شوه چه دا چرے ښکته نه وه راغلے۔ بیا دے راته اووے چه د دوو رڼړا گانو مبارکیادی واخله۔ چه دا مخکښں چا ته نه وے ورکړے شوے۔ اول سورة فاتحه او دویم

دسورة بقره اخری ایتونه - دی به دقیامت په روځ دخپل لستوني په مخکښ درنړا په رنګ کښ ځي -

(۲) عن عطاء بن ابی رباح قَالَ بَلَغَنِيْ اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عليه وسلم قَالَ مَنْ قَرَأَ يٰسٓ فِيْ صَدْرِ النَّهَارِ قُضِيَتْ حَوَائِجُهٗ (رواه الدارمی)

عطاء بن ابی رباح وائی چه ماته دخوږ نبی ؐ دا فرمان رارسیدلے دے چه چا سورة یٰسین دروځے په اول کښ اُوے نو د هٔ دټولے روځے حاجتونه به پوره شی -

دغسے په بل روایت کښ راځی چه سورة یٰسین دقران زړه دے - څوک چه قران لولی - نو د هٔ دلسو قرانونو دلوستو ثواب کیږی - په بل روایت کښ راځی چه د زمکے او اسمانونو دپیدائش نه زر کاله مخکښ سورة طٰهٰ او سورة یٰسین اَلوستٔ نوملائکو اُوے چه خوشحالی ده دهغه امت دپاره په چا به چه دا قران نازلیږی - او دهغه زړونو دپاره خوشالی ده کم به چه دا پورته کوی (یاده وی) او خوشالی ده دهغے ژبو دپاره کم به چه دا وائی - په یو حدیث کښ راځی - چه څوک خالص دالله درضا دپاره سورة یٰسین وائی نو د هٔ ټول ګناهونه به معاف شی - نو دا به خپلو مړو باندے وائیٔ - دے سورة نوم په توراة کښ "مُعِمَّه" دے - دے د

خپلو لوستونکو دُنیا او دآخرت په خیر ونو کړي ـ ځکه دُنیا
او دآخرت د مصیبتونو د لرې کولو ذریعه ده ـ په ځکه دآخرت
هغه ویره تره لرې کیږي ـ د دې سورة نوم "رافعه" او "خافضه"
هم دی ـ ځکه چه په دې د مؤمنانو مرتبې زیاتیږي او
کافران په ذلیله کیږي ـ په یو روایت کښ راغي چه خوښه
بنی م وایي چه ځما زړه غواړي چه سورة یٰسین دِ ځما د
هر اُمتي په زړه کښ وي.

په یو روایت کښ راغي چه چا سورة یٰسین هره شپه
لوسته او بیا مړ شه نو شهید به مړ شي ـ په یو روایت کښ
راغي چه څوک سورة یٰسین لولي ـ نو د ده بخنه به اوشي ـ
او څوک چه دا د لوګے په حالت کښ وایي ـ نو هغه به موړ شي
او چه لار ترِ ژُرک شي ـ نو د دې په لوستو به لار بیا مومي ـ او که
ځناور یې ژُرک شي ـ نو هغه به بیرته راشي ـ او که په وړې ورسخه
لُږه وي ـ نو د دې په لوستو به دا کافي شي ـ او که د ځنکدن
په خاوند اولوستے شي ـ نو په ده ځنکدن آسان شي ـ او که
د بچي په پیدائش کښ سختي وه ـ په دې به آسانتیا راشي
او که د بادشاه یا دشمن نه ویره وه نو د ده په لوستو به دا ویره
لرې شي ـ په یو روایت کښ دي ـ چه چا سورة یٰسین او صٰفٰت
د جمعې په روځ اُوے نو د دې نه روستو به یې دعا قبوله شي ـ

ددے روایات اکثرہ حصہ دمظاهر الحق نہ نقل شویدۀ په بعض احادیث کښې څه قدرے کلام شته۔

(٣) عن ابن مسعود قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم مَنْ قَرَأَ سُوْرَةَ الْوَاقِعَةِ فِيْ كُلِّ لَيْلَةٍ لَمْ تُصِبْهُ فَاقَةٌ اَبَدًا وَكَانَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ يَأْمُرُ بَنَاتَهٗ يَقْرَأْنَ بِهَا كُلَّ لَيْلَةٍ (رواه البیهقی فی الشعب)

حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نبی صلی الله علیه وسلم دا فرمان نقل کوی۔ چه کم بنده سورۃ واقعه هره شپه وائي نو په ده به هیڅ کله لوږه نه راځی او ابن مسعود به خپلو لوڼړو ته وے۔ چه تاسو هره شپه دا سورۃ وايئ۔

په یو روایت کښې راځی چه څوک سورۃ حدید او سورۃ واقعه او سورۃ رحمٰن وائي۔ نو دۀ ته به دجنت الفردوس نه چغے وهلے شی۔ په بل روایت کښې راځی چه سورۃ واقعه سورۃ الغنٰی دے۔ دا پخپله هُم وایئ او خپل اولاد ته یے ښَیی۔ او خپلو بیبیانو ته یے هم ښیی۔ په بل روایت کښې دحضرت عائشے رضی الله عنها ددے ډیر تاکید نقل دے۔ او که د زړه دمالداری او د آخرت دخوشالی په نیت او لوستے شی۔ نو دنیا به ورله خامخا راشی۔ (دا خو خوارہ زارہ ده)

(۴) عَنْ اَبِی هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلے اللہ علیہ وسلم اِنَّ سُوْرَةً فِی الْقُرْاٰنِ ثَلٰثُوْنَ اٰیَةً شَفَعَتْ لِرَجُلٍ حَتّٰی غُفِرَلَهٗ وَهِیَ تَبٰرَكَ الَّذِیْ بِیَدِهِ الْمُلْكُ (رواہ احمد وابوداؤد)

ابوهریره رض د خوږ نبی ع نه دا وینا نقل کوی چه په قران کښې یو سورة دے چه هغه دیرش ایتونه دی نو دا به د خپل دوستونکی د پاره شفاعت کوی ـ تر دے چه د ده بخنه اوکړے شی او هغه تبارک الذی سورة دے۔

خوږ نبی ع د تبارک الذی په باره کښې وائی. چه څما زړه غواړی چه دا سورة د هر مؤمن په زړه کښې وی۔ په بل روایت کښې دی چه څوک تبارک الذی او الٓمٓ السجدة د ماښام او ماسخوتن په مینځ کښې او دے نو ده ګویا د لیلة القدر د شپې عبادت اُکه ـ او په بل روایت کښې دی. چه د ده به اویا نیکئ اُلیکلے شی. او اویا بدی به ئے معاف شی۔

په ترمذی کښې د ابن عباس رض نه روایت دے چه بعض اصحابو یو ځائے تامبو لکولے وو ـ او دی خبر نه وو ـ چه دلته قبر دے ـ نو دی د غلته د تبارک الذی سورة واوریده ـ دی خوږ نبی ع ته عرض اوکه نو خوږ نبی ع ورته

اوے چہ دا سورۃ بندہ دعذاب نہ ساتی او دعذاب نہ خلاصے
ورکوی۔ حضرت جابرؓ وائی۔ چہ خوږ نبی ﷺ بہ دا ودہ کیدو
نہ مخکښې الٓمٓ السجدۃ او تبارک الذی خاخاوے۔

خالد بن سعدان وائی چہ ماتہ دا روایت رارسیدلے
دے۔ چہ یو سړے ډیر ګناهګار وو۔ او دہ بہ صرف سورۃ
سجدہ وے۔ نو ربہ یے هیڅ نہ وے۔ نو دے سورۃ پہ دہ وزرے
أغوړولے۔ او د دہ شفاعت اوکہ۔ نو خدائے د دہ بخښنہ اُکړہ
دهر ګناہ پہ بدل کښې یے ورلہ نیکی ورکړہ۔ دے وائی۔ چہ
دا سورۃ پہ قبر کښې دبندہ دپارہ جھګړہ کوی۔ تر دے۔
چہ دے خدائے تہ وائی چہ یا خما شفاعت قبول کہ او
یا ما د قرآن نہ لرے کہ۔ او دے لکہ د مرغی پہ مړی وزرے
أغوړوی۔ او دے د قبر د عذاب نہ بچ کوی۔ دا فائدہ دے
دتبارک الذی پہ لوستو کښې هم دی۔ خالد بن معدان
بہ هلہ اودہ کیدہ۔ چہ دا دوارہ بہ یے اولوستہ۔ طاؤسؒ
بہ وے۔ چہ د دے دوارو سورتونو لوئی د قرآن پہ نورو
سورتونو شپیتہ درجے زیادہ۔

دقبر عذاب معمولی څیز نہ دے۔ د ټولو نہ اول بہ
د دہ سرہ مخامخ کیدہ وی

حضرت عثمانؓ بہ چہ چرتہ د قبر پہ خواکښې تہ،

نو دومره به یې جړل چه په مخ به یې اوخکې روانې وې.
چا ورته اووې. چه ته د دوزخ په ذکر دومره نه ژاړې
څومره چه د قبر په ذکر ژاړې داولې؟ ده اووې چه ما
د خوږ نبی ﷺ نه اوریدلی دی. چه قبر د آخرت په منزلونو
کښې اول منزل دې. څوک چه په دې کښې بچ شو. نو
راتلونکی واقعات به ورته اسان شي. اوکه دلته راګیر شو
نو مخکښې به ورته لا سختې پیښې شي.

اوده وې چه ما اوریدلی دی. چه د قبر نه زیات دویرې
ځائې بل نشته (جمع الفوائد) اللهم احفظنا منه
بفضلك ومنّك.

(۵) عن ابن عباسؓ ان
رجلاً قال یارسول الله
صلی الله علیه وسلم ای
الاعمال افضل قال
الحال المرتحل قال یا
رسول الله ما الحال
المرتحل قال صاحب القران
یضرب من اوله حتی
یبلغ اخره ومن اخره

ابن عباسؓ وائي چه د خوږ نبی ﷺ
سخه یو سړې راغې او تپوس ئې اوکړ
چه کم یو عمل غوره دې د خوږ
نبی ﷺ ورته اووې. چه "حال" او
"مرتحل" خلقو تپوس اوکړ
چه حال او مرتحل څه
څیز وته دی. خوږ نبی ﷺ ورته
اووې. چه دا د قران لوستونکې
دې. چه قران ترآخره

حَتّٰی یَبْلُغَ اَوَّلَهٗ کُلَّمَا حَلَّ ارْتَحَلَ (رواه الترمذی)

او ائی - او چه ختم او کی نو بیا یې د سره شروع کی او بیا د غسې ختم او کی - او بیا د غسې

"حال" په یو منزل کښې کوزیدونکی ته وائی - او "مرتحل" دے کوچ کونکی ته وائي - نو د قرآن لوستونکے پر له پسې ختم کوی دانه چه یو کنډ ارختم او کی او بس بیا به مخے کال ته چه چرته او زکار شی نو ختم به کوی - په کنز العمال کښې د دے دوارو لفظو نو معنی - اَلْخَاتِمُ اَلْمُفْتَتِحُ دے - ختم کونکے او په دغه روځ د قرآن بیا شروع کونکے - د غه حسو بز د حافظانو یو عادت داغلی دے - چه د ختم نه روستو بیا قرآن سر مفلحون پورے وائی - خودی په دے داد ب په رنګ کښې عمل کوی - دی په دے نه پوهیږی چه دا بیرګنے مونږ بیا ختمو - د احیاء په شرح کښې او د سیوطی په اتقان تفسیر کښې د دارمی په روایت سره نقل دے چه خوږ نبی ﷺ به چه ختم او کړ - نو د سورة بقره تر مفلحون به یې تلاوت شروع کړ - او بیا به یې د قرآن دعا او لوسته -

(٦) عن ابی موسے الاشعری - قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم

ابو موسیٰ اشعری رضی الله عنه د خوږ نبی ﷺ نه داسے نقل کوی چه چه د قرآن شریف خبر اخلیٔ

تَعَاهَدُوا القرا القرآن فَوَالَّذِیْ نَفْسِیْ بِیَدِهٖ لَهُوَ اَشَدُّ تَفَصِّیًا مِّنَ الْاِبِلِ فِیْ عُقُلِهَا (رواه البخاری ومسلم)

ځما د خدای په ذات قسم وی. چه قرآن شریف زد دسینو نه پورته کیدونکے دے. د دینه هم زیات چه اوخ دخپل پری نه خلاصی

ساروان که دخپل اوخ نه غافلشی او هغه درسی نه خلاص شی. نو او به تختی. دغسے که دقرآن شریف حفاظت اونه شی. نو دا به هم یاد پاتے نه شی. هیر به شی. دقرآن یاده ول په حقیقت کښ دقرآن شریف معجزه ده. دقرآن اّوه دبل نیم دکتاب یاده ول هم گران دی. ځکه خدا ے احسان کوی. په سورة قمر کښ چه. وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ موږ. قرآن شریف دیادولو دپاره اسان کړے دے. څوک شته چه دے یادکی. دلته دسوال نه مطلب حکم دے. صاحب دجلالین دا سے لیکی. خدای خوبار بار دقرآن دیاده ولو حکم کوی. اوس ځمونږ په نامه مسلمانان دیته حماقت او بے کاره وخت ضائع کول وائی. په دا سے حالات کښ چه تباهی نه راځی. نو کله به راځی؟ حضرت عُزیر په یادو تورات لیکلے وو. نو ده ته خلقو دخدا ے ځوے اوے. او مسلمانان چه ډیر په کښ

الحمدللہ دقران حافظان دی ډیر خوبن. دطرف نه داقدرا (توبه) وَسَیَعۡلَمُ الَّذِیۡنَ ظَلَمُوۡۤا اَیَّ مُنۡقَلَبٍ یَّنۡقَلِبُوۡنَ ○ خلاصه داده چه دا دخدای ډیر لوی انعام دی چه څوک قران شریف یاد کی. ولی که حافظ ددی باقاعده دوړونه نکوی نو دی زر هیریږی هم. او قران د هیرولو دپاره سخت عذابونه دی خوبنی واپی. چه ماته دخپل امت ګناهونه پیش شو نو په دیکښی لوی نه لوی ګناه دقران هیره ول وو. په بل حدیث کښی راغی چه څوک قران یاد کی. او بیا یی هیر کی نو دی به د قیامت په روځ دکوړی مریض په رنګ کښی محشر کړی شی په جمع الفوائد کښی د رزین په روایت سره دا آیت دلیل دی. چه اِقۡرَءُوۡۤا اِنۡ شِئۡتُمۡ. قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرۡتَنِیۡۤ اَعۡمٰی وَقَدۡ کُنۡتُ بَصِیۡرًا ○ څوک چه خپل ذکر نه مخ کرزوی نو د دی ژوند به تنګ کړم او د قیامت په روځ به دی ړوند پاسوم دی به وایی. چه خدایه! ما خو ښه ستر ګی وی. دا څه ړوند ولی شوم. خدای به ورته اوایی. چه ستا سره زما آیتونه راغلل او تا هغه هیر کړه. لو نن به ته هم ده رقسم اوس هیر کړی شی.

| حضرت بریدہ رضی اللہ عنہ د خوبنی دا فرمان نقل کوی. چه څوک د قران په | (۷) عَنۡ بُرَیۡدَةَ قَالَ قَالَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ |
|---|---|

علیه وسلم مَنْ قَرَأَ الْقُرْاٰنَ يَتَأَكَّلُ بِهِ النَّاسَ جَاءَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَوَجْهُهٗ عَظْمٌ لَيْسَ عَلَيْهِ لَحْمٌ (رواه البيهقي فى شعب الايمان)

په لوستو خوراک د خلقو نه کښې نو د قیامت په روځ به د خدائے نه دا سے پیش شی چه د ده مخ به د اړو کو پنجره وی - غوښه به په نه وی -

ځوک چه قرآن شریف د دنیا د کښې په غرض لولی - د ده به په اخرت کښې هیڅ برخه نه وی - خو نبی ؐ وائی چه مونږ قرآن وایو او په مونږ کښې عجمیان او عرب هر قسم خلق دی ځونکه چه ویلے شی هغه سے دِ وائی - زر به دا سے خلق پیدا شی چه د غشی په شان به نیغ نیغ حرفونه وائی - او د دیو حرف به سمه لو به کښتے نکوی - او بنه کوشش به کوی - او د هر څه به د دنیا د پاره کوی - اخرت به اړو د دی په خیال کښې نه وی - گویا تش خوش اوازی هیڅ د کار څیز نه دے - چه په دے کښې اخلاص نه وی او خالص د دنیا د کښې د پاره اکرے شی - په مخ د غوښے د نشت والی دا مطلب دے - چه د ده قرآن غوندے شریف کلام د ذلیلے دنیا د کښې ذریعه اوگر زوله نو د ده د پیر شریف مخ به هم د ښائیشت نه محروم شی - عمران بن حصین یو واعظ او لید ؐ چه قرآن او لوسته - او بیا یے د دُنیا سوال اوکه - نو ده اِنَّا

لِلّٰهِ اُوے۔ او دا یے اُوے۔ چہ خور بنی م فرمائیلی دی۔ چہ
څوک قرآن او لولی نو د خدائے نہ دِ سوال اوکی۔ څہ خلق
بہ داسے پیدا شی۔ چہ قرآن بہ لولی۔ او بیا بہ د خلقو نہ
سوالونہ کوی۔ مشائخ وائی چہ څوک د علم پہ ذریعہ دنیا
گټی۔ د دہ مثال داسے دے۔ لکہ پیزار چہ څوک پہ مخ
پاکوی۔ پیزار بہ صفا خوشی۔ خو دے پہ مخ پاکول دیرہ
بے عقلی دہ۔ هم دے قسم خلقو دپارہ خدائے وائی۔
چہ۔ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالْهُدٰى۔ دا
هغہ خلق دے۔ چہ دهدایت پہ بدل کښ یے گمراهی واغسته
نو نہ دی گټہ اوکړہ او نہ یے هدایت بیا موندہ۔

اُبی بن کعبؓ وائی چہ ما یو سړی تہ یو سورۃ خولے وُو۔
دہ ما تہ لیندہ د تحفے پہ طور راوړہ۔ ما خور بنی م تہ د دے
ذکر اوکہ۔ نو خور بنی م راتہ اُوے چہ تا د دوزخ یوہ
لیندہ واغسته۔ د غسے یے عبادہ بن الصامت تہ وَیلے
وو۔ چہ تا د دوزخ سرو تہکہ د اُ کو پہ مینځ کښ کیخودہ۔
او پہ بل روایت کښ راځی چہ کہ د دوزخ د اور امیل پہ
غاړہ کوے نو دا قبول کہ۔

پہ دے بہ څہ د حافظانو د قرآن پہ خدمت کښ عرض
اوکم۔ چہ څوک د قرآن پہ ذریعہ روپی گټل مقصد

اوگرزوی. نو په دے تول حافظان بدنامیږی - او خلق
ستا خو د دے عمل په وجه د قرآن د یاد ولو نه پاتے کیږی.
نو ستا خو د دے بد عملی به ستا خو نه تپوس کیږی. تا خو
گویا د قرآن اشاعت په دے طریقه بند ه وی.

علماء کد د تعلیم تنخواه جائزه کرزولے ده نو د دے دا مطلب
نه دے - چه کښے دا دُنیا حاٰ مقصد دے مقصد د اشاعت وی او
تنخواه د ضرورت د پاره اخلی - دا د دے بدل نه دے - دا خو
د ضرورت د دفع یو شکل دے - چه دا د غریب مدرس
حافظ، او قاری د پاره جائز دے - کد څوک بے د تنخواه نه
بله ذریعه معاش لری نو به دے عوض او تنخواه نه دی
افشستر پکار -

"محمد زکریاؒ عفی عنه کاندهلوی مقیم مدرسه مظاهر
العلوم "سهارنپور"، په آخر کښ یوه تتمه ده خو هغه
د دے تیر و احادیثو یو قسم شرح ده په دے وجه څه په دے
احادیث اکتفاء کوم - "د تبلیغی جماعت" په درس کښ دا
احادیث قدر دے وی - الله تر دِ د مولٰنا زکریا صاحب
بالقابه او ځما عاجز دا کوشش قبول شی - او کتونکو تر دِ
خدائے د قرآن عشق نصیب کی - آمین ؛

حبیب الرحمٰن، دار التصنیف رستم، مردان

# د دار التصنیف رستم چهاپ تصنیفات

| | پیسه | روپیه |
|---|---|---|
| تفسیر حبیبی پاره اول | ۰ | ۳ |
| " " " دوم | ۵۰ | ۲ |
| " " " سوم | ۲۵ | ۲ |
| " " " چهارم | ۰ | ۲ |
| " " " پنجم | ۵۰ | ۲ |
| " " پاره عمّ | ۵۰ | ۲ |
| تشریح بخاری پاره اول | ۰ | ۳ |
| " " دوم | | |
| فضائل القران | | |
| د قران خوږے خبرے | ۵۰ | ۰ |
| د حج تحفه | ۵۰ | ۱ |
| د پاکستان عیسائی مشنرو خطرات | ۲۵ | ۰ |

ناظم دار التصنیف

محبوب الرحمن خلف الرشید حبیب الرحمن رستم

ضلع مردان

| کتبه احقر شرف الدین<br>سکنه پیر علی اصحاب بابا |  | ابتدائے کتابت ۱۱ اکتوبر سنه ۱۹۶۳ء<br>انتهائے کتابت ۷ نومبر سنه ۱۹۶۳ء |
|---|---|---|

مصنف..... مولانا حبیب الرحمن دار التصنیف رستم مردان

ناشر..... محبوب الرحمن دار التصنیف رستم مردان

کاتب..... "شرف الدین" پیرکلی پشاور

مطبع..... منظور عام پریس پشاور شہر

تاریخ اشاعت نومبر سنہ ۱۹۶۳ عیسوی

قیمت


داہی اور

فضائل القرآن